دَ کتاب نوم: میزان

لیکونکے: قلندر مومند

دَ چاپ کال وړومبي ځل: 2008

شمیر: 1000

دَ چاپ ځائې: امن پرېس باچا خان مرکز
پېښور

قیمت: -/150

دَ موندلو درک: یونیورستي بُک ایجنسي
خیبر بازار پېښور
091-2212534

# فهرست

هوالناصر

# دا کتاب

اګر که زمونږ دَ رهبر او رهنما محترم قلندر مومند مرحوم او مغفور دَ مرګ پېښنځه کاله کېدونکي دي خو دا غم اوس هم دَ ورومبۍ ورځې په شان تازه دے او دې کښې هيڅ شک نشته چې غمونه ځنې وخت دَ کارونو په لاره کښې خنډان ودروي.

دَ والد محترم دَ ورومبي کال په موقعه نه صرف دا چې مونږ دَ قلندر مومند ريسرچ سېل جوړولو اعلان کړے وه او دَ هغوي يو کتاب "**رڼائي**" او دَ محترم مشتاق مجروح يوسفزي **دَ تاريخ ژړا** مو چاپ کړې وه بلکې دَ قلندر صېب دَ کلام آډيو کېسټ او سي ډي مو هم جوړه کړې وه او زړه کښې مو دا اراده هم وه چې يو وېب سائټ، دَ سېل دَ دفتر سره سره به مونږ هر کال څه نا څه خامخا چاپ کوو خو ډېرې خبرې داسې وې چې زمونږ دَ وس نه بهر وې.

ستاسو په لاس کښې چې دا وخت کوم کتاب دے دا په اصل کښې هم دَ قلندر صېب دَ ارادې مظهر دے نو دغه کتاب طرف ته دَ هغوي نه پس زمونږ توجه زما کشرې خور

عائشه امة الرحمن پلوشه چې دَ دُرنایاب صاحبزاده په نامه لیکل کوي، راوګرځوله. دَ ریسرچ سېل دَ یوې غړې په حېثیت دَ هغې دا قیمتي مشوره هغې داسې عملي کړه چې دَ مقالو دَ راغونډولو کار کښې ئې تُنده منډه ووهله او تر ډېره حده ئې دا کار اسان کړو.

دَ کتاب تعارف مشتاق صېب په ډېره ښه طریقه تاسو ته وړاندې کړے دے. زما وظیفه دا ده چې زهٔ دَ ښاغلي مشتاق صېب، دَ ملګري محمد زبېر حسرت، فضل شاه فضل مومند، جمشېد مومند او دَ ګران عبدالله جان مسرور صېب سره دَ ساهو لیکونکیو دَ مرکې دَ نورو ملګرو دَ زړهٔ له تله ستائنه وکړم. دغسې دَ نور ګل شکریه هم په ما واجب ده چې هغهٔ هم دَ چاپ په کار کښې تر خپله وسه کوشش کړے دے. په سختو حالاتو کښې دَ دغه ملګرو زیار ټول په ټول دَ ربښتوني اخلاص نمونه ده. خدائې دې مونږ ټولو ته توان راکړي چې مخکښې دغه سلسله جاري وساتو.

ځلان مومند
باچا خان مرکز پېښور
دَ محرم پینځلسم تاریخ 1429 هجري

# بسم الله الرحمٰن الرحیم

دَ خوشحال بابا نه پس په پښتو ژبه باندې بې حسابه حق لرونکيو شاعرانو اديبانو کښې يو شخصيت دَ قلندر مومند مرحوم هم دے چې يو خوا ئې دَ خپلې غوره او مقصدی شاعرۍ نه دَ پښتو ادب جولۍ ډکه کړې ده نو بل پله ئې دَ خپل ساهو نثر په ذريعه پښتو ادب ته دَ تحقيق او تنقيد په ميدان کښې دومره څه ورکړی دی چې دَ شلمې صدۍ بل هيڅ يو تن ئې سيالی نه شی کولے او زه دا خبره ډيره په کلکه کوم چې که په شلمه صدۍ کښې په پښتنو کښې دَ تحقيق او تنقيد په ميدان کښې دوه درې تنه ذکر وو نو يو ئې قلندر وه.

قلندر مومند په حقيقی معنو کښې نيشنلسټ وه، په پښتو او پښتنو مئين وه دَ پښتنو دَ يووالی ارمانی وه لکه چې ئې وئيلی دی:

قلندره دا ارمان به ګور ته يوړم
اتفاق په پښتانه کښې پيدا نه شه

او دَ پښتنو دَ دغې لا علاجه مرض له وجې دَ هغوی دغه ارمان دَ هغوی په ژوند پوره نه شه او لکه دَ ستر خوشحال بابا دَ دې خبرې ارمانی له دنيا نه لاړل. نن هغوی زمونږ په منځ کښې موجود نه دی ولې دَ هغوی افکار، خيالات او دَ هغوی يادونه زمونږ سره دی.

دَ هغوی دَ وړومبی کلیزې په موقع مونږ دَ هغوی شاعری دَ "رښائی" په نوم او دَ راقم الحروف کتاب "دَ تاریخ ژړا" ګرانو لُستونکیو ته پیش کړی وو او دا مو په زړه کښې فیصله کړې وه چې ان شاء الله دَ هغوی دَ دویمې کلیزې په موقع به دَ هغوی کلهمې چاپ او ناچاپ مقالې په کتابی صورت کښې چاپ کوو ولې مونږ په خپله دغه اراده کښې کامیاب نه شو چې دَ هغې دَ خپلو ګرانو لُستونکیو نه بخښنه غواړو.

اوس هم مونږ افسوس کوو چې دَ هغوی کلهمې مقالې مونږ پیدا نه کړې شوې البته چې دَ هغوی کومې مقالې مونږ له په لاس راغلی دی هغه په کتابی صورت کښې دا دی ستاسو په وړاندې دی که ژوند وفا وکړه نو باقی پاتې مقالې به هم په کتابی صورت کښې تاسو ته وړاندې کړو.

زه دَ ښاغلی ځلان مومند ډېر ممنون یم ځکه چې دا دَ هغوی شوق او مرستې نتیجه ده. دغسې دَ سید محمود ظفر هم شکر ګزار یم چې دَ کتاب دَ پروف کار ئې تر سره کړے دے او دَ ملګری زبهر حسرت خو ډېره زیاته مننه کوم چې دَ مقالو په راپیدا کولو کښې ئې هم ما سره کومک کړے دے او دَ دوباره پروف ریډنګ کار ئې هم کړے دے. الله پاک دې ټولو له اجر ورکړی. آمین.

مشتاق مجروح یوسفزے

# رحمان بابا

رحمان بابا تر اوسه پورې خلقو د یو صوفي تارک الدنیا شاعر په حیثیت پېژندلو. صوفي خو به زه هم ورته ووایم خو تارک الدنیا ورته نه شم وئیلے ځکه چې رحمان بابا دومره قنوطي نه وو چې د ژوند ځنې ئې فرار کړے وے. هغه زمانه او ستا د ژوند ترجمان وو هغه دا بددیانتي چرته کولې شوه. هغه د ژوند علمبردار وو د ژونده ولې تبتېدلے وے؟ هغه کښې زندګی وه د هغه ګفتار کښې زندګی وه د هغه کردار کښې زندګی وه نو ځان ئې د خپل زړه د اواز نه څنګه کوڼ کړے وے او د زمانې د انقلابونو نه ئې سترګې څنګه او ولې پټې کړے وے هغه ته تارک الدنیا وئیل زما په نزد د هغه عظمت ختمول دي ځکه چې هغه پخپله وائي:

ولایت دے خدائې هغوی لره ورکړے
چې ئې وکړو سکونت په دا دنیا

نه نو رښتیا اصلي مطلب رابه پاتې شه ما دا وئیل چې خلقو تر اوسه پورې رحمان بابا صوفي شاعر شمارلو او د رحمان بابا د شاعرۍ هغه اړخ تر ننه بالکل پټ وو کوم چې زما په خیال د هغه شاهکار دے. د رحمان بابا د شاعرۍ دا حصه د عوامو سره نزدیکت لري هغه دا

شعرونه په سرو وینو کښې ډوب لیکلی دی. دې کښې مقصدیت دے آفاقیت دے ترقی پسندی ده. دَ عوامو سره ملګرتیا او هم آهنګی ده او دَ دې خبرې واضح ثبوت دے چې رحمان بابا یواځې صوفی نه حساس او مکمل انسان هم دے چې دَ غریب په کړاؤ کړیږی دَ هغه غم تکلیف او مصیبت پېژنی په عاجزو ظلمونه محسوس کوی او ترې نه متأثره کیږی. دَ هغه زړه یوه داسې آئینه ده چې قامی تکلیفات او مساعد پکښې ازاد ښکاری. دَ هغه دَ وړاندې یو واضح او غېر مبهم مقصد دے هغه انقلاب غواړی خو امن پسند انقلاب. دَ هغه فطرت تعمیری دے تخریبی نه، هغه هم دَ سرمایه دارو نه داسې په "کو" دے لکه چې نن ترې هر غریب سر ټکوی. هغه هم دَ دې طبقې نه داسې نفرت کوی لکه چې مونږ ترې کوو خو هغه زمونږ نه هم یو قدم وړاندې دے هغه سرمایه دار دَ انسانیت غلیم ګڼی خبر دے که دا سرمایه دار دَ ده سکه ورور وی هغه خو به وائی:

نه شی دَ ملنګو دَ خانانو سره کلی
چرته عزیز خان چرته ملنګ عبدالرحمان

او بیا خپل قام ته، دردمند اولس ته او خپل پرهرژلی زړه ته داسې تسلی ورکوی:

دا پاخه پاخه سرایونه محلونه
خود به وران شی عاقبت په دا دنیا

رحمان بابا دَ خپل قام او اولس دَ عوامو نه متأثر شی چې غریب خو دَ نمرې په پوراک دے او یو څو بدمخی دَ دوی په برکت او دَ خپل رذالت په وجه چرګ، پلاؤ، شراب، کباب او ډمې تماشې کوی. دې

مصرعه کښې څومره ژوره فلسفه ده:

ښه خواږه چې یو ئې خوری بل ورته ګوری

خواږه نه دی هغه زهر دی ګویا

دَ سرمایې متعلق دَ رحمان بابا نظریه بالکل صفا او واضحه ده که یو طرف ته دَ "دلبرو صدقې لره ئې غواړی" نو بل خوا "ما رحمان ته پښښه مه کړې ربه هسې رنګ بلا" وائی. سرمایه که یو طرف ته تعمیری کار کولے شی نو بل اړخ ته دَ ګناهونو جرړه هم ده او دا چاپېرے ئې دومره دروند دے چې تعمیر خو پرېږده تخریب کښې پرې اختراعات کېږی. رحمان بابا نه هم پُښتنه وکړئ چې څه وائی:

دنیا بده دَ هغوی ده

چې ئې کسب وی ریا

یا ئې کسب دَ ریا وی

یا ئې وګټی په غلا

یا ئې ټوله کړی په ظلم

یا دَ خمرو په سودا

یا ئې ورکړی په شرابو

یا ئې ورکړی په زنا

یا ناحق خونونه کاندی

یا مالونه خوری دَ چا

عبادت کړه په ځان فرض

دَ بـــادشـــاه دَ امـــرا

حق باطل کړه باطل حق کړه
پــه ســبب دَ رو ريـا
دَ يوې ګېډې دپاره
هزار خونې کړه بېديا

دا ټول خبيث کارونه څوک کوي؟ هغه څوک چې چا سره بې خرته او بې اندازې پيسې وي چې دَ چا مځې پرې ستړې شوې نه وي چې ټټر ئې پرې تنګې شوے نه وي چې پښې ئې پرې پولې شوې نه وي او چې دا ستا او زما نه ئې په زور ظلم، جبر او فرېب شوکولې وي. دا په ظاهره شريف ډاکې مار څوک دے؟ دا دَ رحمان بابا دَ سترګو ازغے څوک دے؟ دا خونړي ځناوران، ظالم سرمايه داران دی. دا فرېبيان دهوکه باز هغه خلق دی، دا هغه فريق دے چې رحمان بابا ترې نه سر ټکوی تر دې حده چې دَ هغوی په خبرو هم اعتبار نه کوی ځکه چې دا خلق دَ بوسو لاندې اُبه بيائی. دَ هغه دَ دوی په مشرۍ هيڅ اعتبار نشته. ځنګه صفا ورته وائی:

که څوک تله دَ انصاف درته په لاس کا
خپل ټټو دَ بل له اسه برابر کړی

دَ معاش داسې شوکمارو نه دَ ځان ساتلو تدبيرونه هم کوی او خلقو ته ئې هم ښيی، هغه لا په هغه زمانه کښې دنيا دوه برخې کړې وه. يوه دَ ظالمانو، جابرانو، سرمايه دارو دنيا او بله دَ مظلومانو، مجبورانو، محنت کشو او غريبانو دنيا. هغه غريب ته اتحاد ښيئ، مساوات او وروروليٰ ورته ښيئ او وائی:

آدم زاد په معنیٰ واړه یو صورت دے

هـر چې بـل ازاروي هغه ازار شي

دې شعرونو نه دَ رحمان بابا آفاقیت پسندی ښکاری بیا وائی:

زه عاشق یم سریکار مې دے له عشقه

نه خلیل نه داؤدزے یم نه مومند

چې مطلب او مدعا مو سره یوه ده نو بیا خو وروڼه وروڼه یو او:

چې دې ورور یا دې عزیز پرې ازارېږی

حاصل مـه شـه هغه خپله مدعا

دا دَ رحمان بابا عقیده ده خو نه هغه خو لیږهر او پخته کار وه هغه خو ټول قوم په یو منشور باندې غونډولو. وړومبـے ورته دَ اخوت او ورورولۍ سبق ښیئ:

ته چې بل په غشیو وُلې هسې پوه شه

چې هم دا غشے به ستا په لور ګوزار شي

او بیا ورته دَ همت پټۍ په لاس کړی:

ګېډه وتړه په پړی باندې کلکه

دَ ډوډۍ طمع ونه کړے له فلکه

په مزه مزه او ورو ورو چې قوم دې سبق ته غاړه کیږدی او رحمان بابا پوه شي چې که خبر وی اوس کار کیږی نو دَ عزم او امید نه ډک پیغام ورکوی. دې شعر کښې ځومره خوداعتمادی ده او پخپل ځان دَ باور ځومره غټ سبق:

دربخښلے خدائې دَ هرې چارې توان دے

په ډېر توان کښې خپل ځان بولې ناتوان ولې

دا وخت هم تېر شو اوس رحمان بابا قوم ته دَ "به دریا غلط و به موجش بیاویز" سبق ورکوی غوږ ورته کیږدئ:

دَ ذرې په څېر افتاب په طلب خپل کا

لکه تیره هسې پروت په زمین مه شه

کار په تش لستوني نه کیږی بې لاسه

لاس په توره کړه بې لاسه آستین مه شه

څنګه ورله غېرت وروڼی:

په ورځ ناست ئې بې مطلبه

په شپه خوب کړې بې ادبه

لاس دې وختو له دواړو

هم له روز او هم له شبه

دَ انقلابی جدوجهد سره سره رحمان بابا قوم ته اقتصادی سبق هم ورکوی:

بې هنرو لره قند زهر قاتل وی

قند ئې وګڼه که زهر په هنر خورې

او بیا داسې مرحله هم راغله چې رحمان بابا نور ټینګ نه شه علی الاعلان ئې ووئیل:

زغره واغونده ملا وتړه په جنګ

دغه پسه معرکه کوه دَ ننګ

ننګیالے چې یو ځل مخ په هغه لور کا

نور هیڅ نه وینی کوهے وی که ګړنګ

دغه دے دَ رحمان بابا اصلی روح، دغه دے دَ هغه دَ ژوند علت

غائی، دغه دے هغه مقصد چې رحمان بابا ئې په تکل وه دغه دے هغه درس عمل چې نن نه سوونه کلونه مخکښې زموږ نیکه موږ ته راکړے وه، شته موږ کښې څوک داسې چې دَ رحمان بابا دَ لوئې عمل څښتن رحمان بابا، دَ سرېن دَ باغ طوطی رحمان بابا، دَ مومنذو دَ سترګو تور رحمان بابا په دې وصیت عمل وکړی. دَ هغه دا درس عمل دَ خپلې لارې لیت کړی. هغه خو قام ته وائی:

زه دا ستا دَ غمه ژاړم واړه وینې

واړه وینې واړه وینې واړه وینې

شته داسې سترګې چې هغه وینې ووینی چې رحمان بابا پرې ژړلی دی.

(میاشتنے "اسلم" پښنور رحمان نمبر شماره ٦ ٧ اپریل ۱۹۵۰ء)

# صدرالدين عيني

## يو تاجک اديب

صدرالدين عيني دَ اصل نه تاجک دے او دَ تعليم او تعلم په لحاظ اُزبک. ځکه چې دَ سن شعور نه دے بخارا کښې پاتې شوے دے او دَ دغه ځائې اوسېدونکے دے. دلته دهٔ زده کړه کړې ده او هم له دغه ځائې نه دَ دهٔ دَ علم او ادب ابتدا شوې ده چې دَ ازبکستان او تاجکستان بېل جمهوريتونه جوړ شول نو عيني خپله ټکاونړه تاجکستان کښې خوښه کړه. دَ دې باوجود هغه نيم اُزبک او نيم تاجک دے. دواړه ملکونه او قامونه عيني دَ خپل قام ځنې ګڼي.

وسط ايشيا چې دَ انقلاب نه اګاهو به ورته خلقو روسی ترکستان وئيلو دَ انقلاب نه پس ته کازک، ترکمانيه، تاجک، کرغيز او دَ اُزبک په سوويت جمهوريتونو تقسيم شهٔ او په دغه نومونو ياد شهٔ. چې په اُزبکستان کښې دَ سوويت جمهوريت طاقت قائم شهٔ نو په دغه وخت کښې عيني دَ لوئې او مسلم شهرت خاوند وهٔ. صدرالدين په وړوکتوب (هلکوانه) کښې دَ کلي په يوه مدرسه کښې په سبق کښېناست. (دَ کلي په مدرسو کښې چې ماشومان پکښې پنج سورې او هفت هيکلونه وائي) دلته دَ زده کړې نه پس عيني بخارا ته لاړو او هلته ئې په سبق ګټې پورې کړې. دې دوران کښې دَ يو جماعت (مسجد) په خدمت مامور شو چې دَ هغې امام دَ وخت مقتدر عالم وهٔ. عيني دَ دهٔ ځنې دَ اعلىٰ نصاب درس شروع کړهٔ. غرض دا چې

عینی دَ "امیر" په وخت کښې دَ رائج نصاب تعلیم دَ پوره کولو فضیلت حاصل کړه. او چې تحصیل تمام شو نو دَ پښتانو شاعرانو ادبي مطالعه ئې شروع کړه. دوی کښې هغه سعدی، حافظ او جامی په ښه ژور نظر وکتل. عینی تخلص ئې اختیار کړه او دَ شعر په دنیا کښې ئې ځان ته یو ممتاز مقام پیدا کړه.

عینی لږه موده کښې دَ نهایت قابل انشا پرداز او دَ "محرر" په حیثیت مشهور شه. او خلقو دا اعتراف وکړو چې په قصیده گویۍ او عرضی نویسۍ کښې عینی "فردکامل" دے. تر دې حده چې چا به امیر یا قاضی القضاۃ ته درخواستونه کول نو بې دَ عینی به ئې په بل چا خوا نه سرېده. په دې شان عینی سماجی (اولسی) رنګ کښې هم مقتدر شخصیت وه.

دَ عینی تربیت چې په کومه فضا کښې شوے وه هغه دَ منځنۍ زمانې (ازمنهٔ وسطیٰ) دَ گمراهیو او دَ تورو تیرو ماحول وه او دَ صدرالدین دَ فطرت سره په هیڅ حالت کښې هم مطابق نه وو. نو هم دغه وجه وه چې لږه موده پس ترې دَ عینی زړه راډک شه او دَ تصنیفاتو نه ئې دَ بغاوت اظهار کېدل شروع شو. په خپلو لیکلو ده حقیقتونه ځرګند کړل او دَ خلقو سرونه یو ځل دَ سوچ دپاره ځوړند شول. هغه ته ښکاره شوله چې دَ انسان په حیثیت کښې دَ هغوی هم څه انسانی حقوق شته. دَ عوامو له طرفه دَ امیر په حکومت هم څه فرضونه عائد کیږی دَ غریبانو ناچاری دَ قدرت خوښه نه ده او نه دَ امیر ټول واکی ارادهٔ خداوندی ده. اوچته اولسی طبقه کښې خو اول دَ عینی په دې نعرو چې دَ حق او صداقت دپاره وے، ویره او خوف پیدا

شو، بیا خفګان او وېزاری او بیا خو دَ دې خفګان عملی ثبوتونه هم څرګند شول. خو دَ دې ئې هیڅ پروا ونه کړه او هم هغسې ئې خپل فرض منصبی ادا کول. خو هرکله چې دَ مخالفینو دَ طرف نه تعزیر او تشدد په زیاتېدو شو نو په جواب کښې ئې عېنی هم خپله لهجه په سختېدو کړه.

غټ خلق ترې په دې ګیله مند وو چې ګوندې دۀ دَ آدابو او دَ مروت زاړۀ روایات دَ پښو دَ لاندې غوبل کړی دی. دَ بخارا په ټول تاریخ کښې له دې قسمه غداری او بغاوت مثال نشته. دۀ دَ امیر او دَ هغۀ دَ وزیرانو او نورو درباری امیرانو بې عزتی او سپکاوے کړے دے. دۀ دَ مشرانو زړه لار پرېښې ده. زاړۀ رسمونه ئې پرېښی دی دَ پېړو دَ رائجو عقیدو مخالفت ئې کړے دے. دَ دې ټولو الزاماتو او خبرو جرمانه عېنی داسې ادا کړه لکه چې دَ دۀ نه وړاندې دَ حق او دَ صداقت ملګریو مخکښې ادا کړې وه. عېنی دَ همت او دَ استقلال تکړه ثابت شو او دَ وسط ایشیا دَ "نوې بخارا" دَ تحریک سردار وټاکلے شو.

صدرالدین دَ بخارا نه تاشقند ته لاړو. امیر دَ دۀ په غېر حاضری کښې دَ دۀ ورور قتل کړو. دَ عېنی خپل ورور سره ډېره مینه وه دې واقعې هغه لېونے کړو. دَ هغۀ دَ غم څۀ حد او دَ غصې څۀ انتها نۀ وه. دۀ دَ ورور په غم کښې یو نظم لیکلے دے چې پکښې ئې دَ خپل زخمی زړۀ وینه صرف کړې ده. دا نظم په خپل اصلی صورت کښې هیچا سره نشته. دَ دې فارسی نظم اُردو ترجمه اخبار "قومی جنګ" شائع کړې ده چې دَ لُستونکیو دَ وړاندې ده:

بیا غزل به زړه دَ مینې
چرې دَ خلې نه نه وباسم
چې موقوفه مې نغمه کړه
او نغمه چې دَ گلشن وه
ترانه دَ ښکلې خوب هم
پس له نن نه به وانه ورئ
نن نه پس زما اواز کښې
به نعرې دَ انقلاب وی
انقلاب کښې به شباب وی
هم سروټکې دَ نفرت به
دَ الفت په ځائې لیدۀ شی
چې موقوفه مې نغمه کړه
یو نغمه چې دَ گلشن وه

په دې موقعه دَ عبنی درې شعرونه چې اخبار "قومی جنگ" ته په خپل اصلی صورت لاس ته ورغلی دی هم نقل کوم:

در آتش ستم جگرم شد کباب سرخ
از خون مستبد قدح ده شراب سرخ
بر انقلاب روئے مرا سرخ کے کند
از انقلاب سرخ دمد آفتاب سرخ
عبنی بیک غزل نتوان شرح حال کرد
باید به انقلاب نوشتنی کتاب سرخ

عېنی بغېر ذَ حاکمانو ذَ اجازت "قزلتاب" ته لاړ او هلته ذَ مالوچو په یوه کارخانه کښې ئې مزدوری شروع کړه. دا هم یوه نوې خبره وه چې ذَ دومره اوچتې طبقې او شاندار سړے په کارخانه کښې مزدوری کوی. ذَ خلقو خیال ته دا خبره نه شوه راتلې. چې یو داسې عالم فاضل سړے ذَ مزدورۍ کار خو لا څه چې ذَ مزدورۍ کولو نیت هم څنګه کولے شی. ذَ بخارا په تاریخ کښې داسې مثال نه وه. چې یو زلمے شاعر ادیب عالم فاضل دې ادنیٰ غُندې مزدوری کوی، ذَ بخارا مشران په دې هم ذَ ده نه خفه شو.

دا خبرې چې امیر بخارا واورېدې نو صدر الدین ئې بخارا ته راوغُښت او ده ته ئې ذَ یو معزز او دولتمند جماعت (تاسو به حېران شئ چې په هغه زمانه کښې ذَ خدائې کور هم په معزز او غېر معزز دولتمند او غریب طبقه کښې تقسیم وه). ذَ نګرانۍ پېش کش وکړه. عېنی دا پېشکش قبول کړه. ذَ امیر بخارا صرف دا مطلب وه چې دا رنګ به زه ذَ ده ذَ مرګ بنه بندوبست وکړے شم. ولې حېرانتیا دا ده چې امیر علیم خان والئ بخارا ذَ ده په مرګ ولې صرفه وکړه او دے ئې تش نظر بندۍ ته ولې واچولو. ذَ قېد ذَ تکلیفونو په زغمل عېنی دا ثابته کړه چې هغه نه صرف ذَ مرګ نه انکار کوی بلکې دا هم چې هغه په ژوند هم اصرار کوی. اوس دې ته که ذَ عېنی خوش قسمتی وایئ او که نور څه. چې هم په دغه دوران کښې انقلاب وشه او اُزبک عوامو ذَ "سرو" فوجونو په ملګرتیا کښې ذَ جېل دروازې ماتې کړې. او ذَ جبر او استبداد ذَ لاسه مظلومانو قېدیانو په ازاده هوا کښې ساه واخسته.

عېنی سره دَ نوی تحریک دَ حامیانو پوره غټ ټولے وه خو دوی کښې بعضې خلق دَ حکومت د جبر او استبداد د وړاندې اعتدال پسند شوی وو ولې عېنی یو رښتینے "هیرو" ثابت شو او ده خپل علم او فضل او شعر و ادب دَ عوامو دَ خدمت دپاره وقف کړه او دغسې دَ قومی ثقافت رهنمائے اعظم وټاکلے شو.

وسط اېشیا کښې په دغه زمانه کښې شعری ادب ډېر مقبول وه او دَ نن زمانې په ژبه کښې چې ورته نثری ادب وئیلے کیږی دا څیز هغه وخت مفقود وه او دا خو ښکاره خبره ده چې دَ نویو غُښتنو مطابق شعری ادب دَ نثری ادب ضرورت نه شی پوره کولے. دَ وچتې پایې شعری ادب بېشکه دَ ثقافتی قدرونو دپاره لار صفا کوی او عام طور سره موثر وینو ګورو چې نثری ادب او بیا خصوصاً واقعیت نګارانه طرز کښې ناول نویسی هغه وخت پیدا کیږی کوم وخت چې یو قوم دَ اولسی او ثقافتی ترقی یو ښو مزلونه وهلی وی. دَ مثال په طور دَ اېشیا په نورو ملکونو کښې لکه ترکیه، ایران او دَ براعظم هندو پاکستان ادب کښې هم نوی توکی (جدید عناصر) دَ شلمې صدی دَ سره شروع شول. ځکه چې دغه وخت قومونو کښې سیاسی تحریکات شروع شول او دَ ازادی او ترقی خیالاتو پکښې جرړې ښخې کړې. چې دَ ازادی تبلیغ سره جمهوری خیالات خواره شول نو دَ نثری ادب ضرورت هم محسوس شو او داسې دا ادب زیات شو.

عېنی دَ وسط اېشیا یو داسې دور کښې پیدا شو چې دَ خپل ذهانت په وجه دَ نثری ادب او دَ نوې ناول نویسی بابا آدم ثابت شو. عېنی په دغه زمانه کښې وړومبے سړے دے چې هغه مسجع او

مقفیٰ عبارت لیکل پرېښودل او بالکل ساده لیکل ئې اختیار کړه. ده دَ ګل او بلبل تذکره او لفظي جمالیات هم پرېښودل او دَ عوامو په ژبه کښې ئې تصنیف او تالیف شروع کړو.

( اول چاپ ۱۹۵۰ء دوېم چاپ روزنامه وحدت پېښور)

# سلیم دَ هغه شاعري

دَ دې اپریل په دیارلسم تاریخ به دَ سلیم دَ باقاعده شاعرۍ څلور کاله پوره شي. دا زه ځکه وایم چې دَ سلیم دَ غزلونو کتاب کښې وړومبے غزل دَ ۱۹۵۱ء په څوارلسم اپریل لیکلے ښکاره کړے شوے دے. دا ظاهره ده چې ذومره لږه موده کښې شاعر، شاعري خو څه کوے چې دَ شاعرۍ په حقله خپله نظریه هم نه شي پخولې خو لکه څنګه چې ما عرض وکړو دا دَ سلیم دَ باقاعده شاعرۍ عمر دے. ځکه چې دغه ذکر شوے وړومبے غزل پخپله دا ثابتوي چې دا دَ بالکل نو اموز شاعر کلام نه دے. دَ دې غزل یو څو شعرونه دَ خپلې خبرې په ثبوت کښې پیش کوم:

ته تابع دَ موسمونو چې خبر دَ رازه نه یې
زما ژوند سپرلے دے خو چې ډکه پیمانه ده
ته یې خورې وایې سرکه ده زه یې څښمه چې شراب دی
دا عرق چې ترې نه ووځی دَ یوې غُنچې دانه ده
ستا دَ سترګو دَ کاسو نه مقدسې نشې څاڅی
شرمنده ورته شراب دی او سر ښکته میخانه ده

دَ دې وجې نه دَ سلیم په شاعرۍ دَ وخت او عمر لږوالی څه خاص اثر نه دے اچولے. البته دا ضرور ده چې شاعر دَ وخت په نسبت ډېر کم لیک کړے دے. خو دا مقدار دَ هغې معیار په مقابله کښې هیڅ وقعت نه لری کوم چې دَ سلیم دَ شاعرۍ انفرادیت دے.

په دې څلور کاله کښې دَ سليم دَ شاعرئ يون څنګه پاتې شوے دے؟ دَ دې سوال دَ ځواب دپاره به زۀ دا موده په دريو حصو کښې تقسيم کړم. او دغه دريو حصو ته به زۀ دَ هغۀ دَ شاعرئ درې مختلف دورونه ووايم. هر څو که دا دورونه يو بل سره پيوست بلکې يو بل کښې نښتي دي خو که مونږ دَ سليم دَ شاعرئ ژوره او باريکه مطالعه وکړو نو دَ دۀ شاعرى هم دغه درې برخو کښې ويشلې ښکارى.

دَ سليم دَ شاعرئ اول دور لکه چې دَ هر شاعر سره کيږى دَ عشق او محبت په چاپيرچل کښې چورلى. دے دور ته به زۀ دَ رومانيت دور ووايم. ځکه چې دَ رومانيت ټول خواص دَ دې دور په شاعرئ کښې جوت او کار کونکى دى. رومانى شاعران ژوند بلکې دَ عاشق ژوند يو جامد غُندې شے ګڼى چې دَ هغۀ دَ باقى ژوند سره هيڅ علاقه نۀ وى. هغوى که څۀ محسوسوى نو صرف دَ محبوب جفا دَ رقيب ظلم او دې خوا ته ئې فکر نۀ ځى چې محبوب او رقيب دَ عملى ژوند علامتونه کړى او اجتماعى ژوند باندې دَ خپل احساس احتوا وکړى.

سليم لکه څنګه چې ما عرض وکړو باقاعده شاعرى ۱۹۵۱ء کښې شروع کړې ده. نو ځکه دۀ لره پکار وو چې هغه شے چې دۀ وروستے محسوس کړے او په دې شعر وئيلو مجبور کړے دے:

دا ځولنې چې دَ ښنو نۀ پرېکوم
جوړې دې بار سره عادت شومه زۀ

هم هغه وخت محسوس کړے وے کوم چې دَ دې اصلى وخت وۀ او دَ

دې ټولې غلطۍ اصلي وجه دَ دې دَ حقيقي دنيا نه فرار او دَ رومان په غېږه کښې پناه اخستل دي.

سليمِ زما دَ يقين او ذاتي معلوماتو مطابق، دَ خپلې شاعرۍ په دې ابتدائي دور کښې دَ خپلې او پردو ژبو دَ کلاسيکي شاعرۍ دَ مطالعې تکليف نه دے کړے. دا مطالعه دَ يو ښېرازه شاعر دپاره ډېره ضروري ده ځکه چې په داسې مطالعه به هغه په دې پوه شي چې زړو دَ شاعرۍ قافله تر کومې رسولې ده او چې هغه ته دَ خپل سفر او منزل پته ولګي دَ دې مطالعې دَ کمۍ لازمي نتيجه دا وه چې دَ سليم دَ شاعرۍ دَ سفر آغاز دَ غلط ځائې نه وشو او هغه هم هغه څه وئيل شروع کړل چې دَ دې نه مخکښې په کراتو مراتو او نسبتاً ښه انداز کښې وئيلې شوي وو.

دَ نظر په غشيو وولہ زما زړه دې نښانه ده

دَ خلوص او مينې ډکه دا حقيره نذرانه ده

تیر پر تیر چلاؤ ڈر کس کا ہے

سینہ کس کا ہے میری جان جگر کس کا ہے

يا دَ حميد بابا شعر چې:

که باړه دې دَ اشنا راښکلې غشي

يو زما دَ زړه دَ نخښې خطا مه شه

دَ سليم شعر دے:

توبه دَ ميو نه وېستلے نه شم

هسې مې خُلې له په خطا راغله

او حافظ شیرازی وائی:

اگر به شب بزبانم حدیث توبه رود

ز بے طهارتی آن به مے غراره کنم

دَ دې توارد یوه وجه دَ عشقیه مضمونونو کمے هم کېدے شی خو دا حقیقت دے چې سلیم دَ مطالعې په لړ غُنډې تکلیف دَ دې نه پېږه ډېره اسانه بچ کېدے شو لهٔ دې کبله دَ سلیم شاعری کښې داسې مضمونونه هم راغلی دی چې هغه بالکل سطحی او کله نا کله مهمل هم وی.

دا چې قبر شانې ښکاری یو مرګونے پکښې پروت دے

دا زاهد دے غلط مهٔ شې دَ زاهد خلوت خانه ده

چې کتلے ئې نهٔ شو حسن نو ساتلو ئې پردو کښې

اوس دې ګرځی بې نقابه اوس زمونږه زمانه ده

لړ ځکمه ئې چې څهٔ دی

چې تراخهٔ دی کهٔ خوارهٔ دی

واعظه ستا هغه رټلے سلیم

راشه ځانګو کښې اوس دَ نُور ځانګی

ډېر وائی ځنبلو نه ئې طمعه نښه ده

کهٔ اراده ئې وی محکمه نښه ده

دې دور کښې سلیم چې ځان ته کومه خیالی دنیا جوړه کړې ده دَ هغې تقاضا خو دا وه چې دهٔ دَ هغې خپلې تنګې دنیا نه دَ بهر کتلو تکلیف نهٔ وے کړے ځکه چې دَ جنسی او عشقیه خیال او فکر سره دَ کائنات غم او اجتماعی شعور په اله اسانه نهٔ شی کېدے خو دا

دَ سلیم دَ ناقلاره طبیعت وجه ده او کهٔ دا دَ ترقی پسندې شاعرۍ پـهٔ لار دَ قدم اخستلو وړومبۍ علامې وے. چې هغـه دې دور کښـې څنـې ډېر ښهٔ شعرونه وئیلی دی اګر چې دَ شمار پهٔ لحاظ ډېر کم دی:

زهٔ به ومنم واعظه خو کهٔ مونږ لږ مطمئن کړې
زما مخکښې حقیقت دے ستا خبره افسانه ده

اوس دې نه به یا خدائې خبر وی یـا سلیـم چـې دلتـه هغـهٔ حقیقـت او افسانه کومو معنیو کښې پکارولی دی ځکه چې دَ دې نه پـس تـه یـو شعر کښې چې هلته هم خطاب واعظ ته ښکاری وائی:

تهٔ ئې خورې وائې سرکه ده زهٔ ئې څښمه چې شراب دی
دا عرق چې ترې نه ووځی دَ یوې غُنچې دانه ده

او دا شعرونه ئې څومره واضح دی:

څهٔ بوټی شنهٔ کړی چا نه غلے تېر شی
داسې بهار سره عادت شومه زهٔ
دا ځولنې چې دَ پښو نه پرېکوم
جوړې دې بار سره عادت شومه زهٔ

ولې دا شعرونـه چـې دَ کومـو غزلونـو نـه اخستـے شـوی دی دَ هغـو دَ شعرونو اکثریت دَ دې شعرونو مخالف مواد او خواص لری.

سلیم دې دور کښې لکه څنګه چې پکار دی دَ جذباتو دَ شـدت پهٔ لحاظ ډېر ښهٔ شعرونه لیکلی دی او لهجه ئې دَ خلوص نه ډکه ده.

تهٔ سموې دَ اشنا ورانې زلفې
بړمنځې ستا جوړې قضا راغله

دے جوهر دَ ارمانونو

اوښکه نه ده، نه اوبه دی

شاید ښه شی مېکده کښې

څم هڅوکی مې درانه دی

شی زلزله دواړه جهانه خوځی

ستا په غوړونو کښې چې دُر ځانګی

او دا شعر خو ئې یقیناً فرد دے:

خدائې دې دَ زلفو ښانګې تاندې لره

دا چې په ما غُندې رنځور ځانګی

دَ قافیو دَ غلطیو نه علاوه چې هغه بالکل فطری دی دې دور کښې سلیم دَ ژبې غلطۍ هم کړی دی. دلته ئې زه صرف یو مثال کافی ګڼم:

ستا دَ سترګو دَ کاسو نه مقدسې نشې څاڅی

شرمنده ورته شراب دی او سر ښکته مېخانه ده

دَ سرښکته ترکیب زما دَ خیال مطابق غلط دے.

دَ سلیم دَ شاعرۍ دویم دور دَ دې غزل نه شروع کېږی:

ولوړې اخستے یم غزل نه لیکم

ښکلې قصې به دَ وربل نه لیکم

دا دور دَ هغه دَ واقفیت پسندۍ دور دے. ځکه چې دلته سلیم دَ رږمانی دور هغه خاصیت پرېښے دے چې ذهن نه یو نوے شے جوړ او متعارف کړی هغه دې دور کښې شیزونه لکه چې دی نه هغسې لکه چې پکار وو یا لکه چې ذهن کښې ترې څه تاثر قائمېږی بیانوی. دلته سلیم دَ وړومبی دور دَ شاعرۍ برخلاف ردعمل شروع کوی. هغه په

دې خو پوه شوے دے چې دَ رومان "یوټوپیا" کښې وسېدل دَ عوامو سره دَ تعلقاتو مزے شلول دی او دغه مزے شلول دهٔ ته ادب سره غداری ښکاری ولې هغه جذباتو دومره پهٔ مخه کړے دے چې هغهٔ ته خپله دَ وړومبی دور شاعری محض تضیع اوقات ښکاری او ځکه ئې پهٔ دغه انتها پسندئ دَ شاعرئ هیئت قربان کړے دے. دَ موضوع دپاره فن قربانول هم دومره بد کار دے لکه دَ فن دپاره موضوع قربانول. او دا دَ شاعر عظمت کښې حسابېږی چې هغه فن او موضوع دواړو سره انصاف وکړی. ولې سلیم پهٔ دې ..........................

دې پابندو کښې اخر څهٔ ولیکم

څو چې حالات نهٔ دی بدل نهٔ لیکم

او هم دغه ردعمل دے چې دَ دهٔ ذهن ئې پرېشانه کړے دے. دَ سلیم دَ دې زمانې غزلو کښې متضاد جذبات، دَ اظهار بیان غلط او بدرنګه طریقه او هیئت سره بې انصافی جوته ده. دا هم دَ دغې زمانې غزل دے:

دنګې ماهئ درله دَ جم رژوم

دوی زیاتولو زمونږ غم رژوم

تهٔ دې کوداله او کهئ چلوه

زهٔ به ئې پهٔ څوکه دَ قلم رژوم

ځم چرته بوټے سایه دار اخلم

دَ اشنا زلفو نه لږ کار اخلم

دَ وړومبی دور برعکس دویم دور کښې سلیم نظمونه هم لیکلی دی ځکه چې هغهٔ اوس اجتماعی شعور حاصل کړے او براه راست خطاب

ته جوړ شوے وه. هر څو که سليم دلته هم دَ فن دَ قيد نه فرار کړے دے ولې بيا هم دَ نظم حصه کښې دَ هغه تخليقات دَ غزل مقابله کښې دَ اظهار بيان، رواني او سلاست په لحاظ ډېر اوچت او دَ ستائنې وړه دي:

اوس به که خېر وي خپل جهان جوړ کړو
مونږه تقدير به دَ انسان جوړ کړو
ستورې به زمکې ته پسخېږې زمونږ
مونږ به دې زمکې نه اسمان جوړ کړو
داسې جهان چې خوشحالي وي پکښې
هر يو موسم دَ سوکالي وي پکښې
دَ هر چا شونډو ته خندا ورسي
او دَ هر چا سره سيالي وي پکښې
(زېړے)

ماته معلوم نه دے شباب څه وي؟
څه ته نغمې وائي رباب څه وي؟
مېکده څه وي؟ مېخواران څوک دي؟
ما نه دي هېر زما ياران څوک دي؟
مانه زما دَ غم تشريح غواړه
که مناسب وي بيا تفريح غواړه
مانه برېنډ اولس لباس غواړي
پرېوتې خلق رانه لاس غواړي

ما نه چاپېره يتيمان ناست دي

ولوړو وهلی ماشومان ناست دي

کله تيونس کله وېت نام له ځم

زه د عوامو هر يو لام له ځم

راځه اشنا چې اول قام جوړ کړو

بيا که فرصت وي بيا به جام جوړ کړو

(دَ دوست په نوم)

ښاړو بنجرو نه چمن سازوو

ځپې اوربل مونږ دَ وطن سازوو

چرته غلې چرته ګلونه کرو

دَ مېوؤ بوټي شنه باغونه کرو

سينې دَ ځمکې نه مونږ زور وباسو

او په خپل وس ترې ټول جوهر وباسو

بيا هم نهر يُو او نهر وسېړو

ځائې په ځائې ګرځو در په در وسېړو

(فېصله)

خو ښه ده چې دَ سليم دا بحراني حالت ډېر ژر لرې شو. اوس دَ هغه دَ شاعرۍ دريم دور شروع کېږي. (اخرى ورته ما عمداً نه دى وئيلی ځکه چې لا دَ سليم شاعرى دَ نورو ډېرو دورونو نه تېرېدونکې ده) دا دَ رومانی حقيقت پسندۍ دور دے دا دور دَ موضوع او فن ته دَ امتزاج دور دے. دلته دَ سليم غزلونو کښې رمزيت او دَ هغه نظمونو کښې بېباکی خلوص او عظمت پيدا کېږي. دلته دَ هغه ذهن دَ خپلې

شاعرۍ په اول او دویم دور تنقیدی نظر اچوی، په خپل فن پخپله تنقید کوی دَ اول دور نه رومان او دَ دویم دور نه واقعیت پسندی راخلی او له دې ځایه دَ خپل اصلی او سم سفر آغاز کوی دلته دَ هغه مزاج پوخ شوے قلم ئې تللے او شعور ئې بالغ دے.

دلته هیله هغه دَ ادب په اصلی او ترقی پسند تعریف پوه شوے دے دلته هغه ادب صرف ادب یا دَ ژوند عکاس نه ګڼی بلکې ورسره ورسره ئې دَ ژوند دَ ښو قدرونو نمانځونکے، ژغورونکے او ساتونکے هم ګڼی او په دې هم پوه دے چې دَ ادیب او ربتونی شاعر فرض دلته ختمیږی نه بلکې هغه دَ ادب په ذریعه دَ ژوند دَ ښو قدرونو رواج دَ بدو قدرونو استیصال او خاتمه کوی دَ هغه کار صرف دَ ژوند کښل نه دی بلکې دَ ژوندی او ساهو قدرونو مخکښې بوتلل هم دی. ځکه چې دَ شاعر مقام دَ فوټو ګرافر نه ډیر اوچت دے. هغه به ژوند داسې لکه چې پکار دے، نه یواځې داسې لکه چې ښکاری، بیانوی او غواړی. دَ هغه په خیال کښې ادب دَ سماجی نظام دَ بدلولو او ښه کولو دپاره یوه آله ده. هغه ادب ته دَ ژوند نقاد، دَ ژوند مفسر، پاکونکے او جوړوونکے وائی.

دا دَ ګلاب تندے په څه خوله شو
دا خو یو ګل دے څه مزدور خو نه دے
دا په اوښکو چې خړوب ده دا په وینو چې سېراب دے
دا زما دَ ژوند قصه ده دا زما دَ ژوند کتاب دے
دَ منزل په تعین کښې رهبرانو
قافلې ته هم څه حق دَ فیصلې شته

چې ګیله مې درته وکړه نو خفه شوې
ته له ما سره پښتو کړې پښتنه شوې
خیال مې چې ستا دَ پیغلتوب راغے
داسې اوده غُندې شوم خوب راغے
شونډې مې یو بل ته ورغاړه وتې
لفظ چې پرې ستا دَ مئینتوب راغے
دا خولنې چې دَ ښنو نه پرېکوم
جوړې دې بار سره عادت شومه زه
ماله ئې باغ کښې تش ازغی تازه کړه
داسې بهار باندې زه اور لګوم

او دا ئې اخری شعرونه دے:

چې مې وېنا ته خلق غوږ نه ږدی
ځکه ستا زلفو کښې کمځو کښې اوسم
زړه مې دا غواړی چې وے زلفو کښې پټ
وخت مې راکاږی په غرمو مې تړی

دَ مضمونونو تکرار که عشقیه شاعری کښې وکړې شی چې مضامین او ماحول محدود وی نو هر څو که جواز لری بیا هم دَ ګرمی شے نه دے. خو دَ سلیم دَ دومره وسیع پلن سکوپ په موجودګی کښې دَ نوؤ نوؤ خیالونو په افراط کښې او دَ سلیم غُندې باریک بین دَ خلې نه داسې تکرارونه څه خو بدی لیدے شی.

خو سره دَ دې هم دَ سلیم دَ موجوده دور شاعری داسې شاعری ده چې ژبه پرې فخر کولے شی او که دَ سلیم دَ شاعری رفتار هم داسې

وه او لکه څه چې دَ سلیم دَ شاعرۍ دَ اکر نه ښکاري چې هم داسې او له دې به زیات وي، پښتو او پښتانه ترې دَ ډېر ډېر څه توقع کوي.

(میاشتنے الفلاح پښتو ایډیشن مارچ ۱۹۵۵ء)

# فن او مقصد

دَ ابدی تنقید پلار ارسطو چې دا وئیل چې فن نقل دے نو دَ هغه مطلب دا هیچرې نه وه چې دَ فنکار حېثیت صرف دَ کېمرې دے. چې څه ورته مخامخ شی یا څه ته چې مخامخ شی نو هو بهو دَ هغې نقل یا عکس واخلی. فنکار چې مشاهده وکړی او دَ هغې مشاهدې اظهار کوی نو کېدے شی چې دا اظهار په څنو حېثیتونو دَ هغه څیز نه دَ کوم نه چې فنکار متاثر شوے دے کم وی خو دا یقینی ده چې دغه اظهار په ډېرو حېثیتونو دَ دغه څیز نه زیات هم وی. دغه زیاتے دَ فنکار دَ تنقیدی حس پېداوار دے. دا تنقیدی حس خپل اظهار په دوه طریقو کوی. په رنګ او معنې. او حقیقت هم دا دے چې ټول فنی او ادبی تنقید دَ دغه دوه طریقو رنګ او معنې نه چارچاپېره چورلی. دغه رنګ او معنیٰ ده چې ارنلډ ورته "خواږه او رڼا" وائی. او هم دغه رنګ او معنیٰ ده چې افلاطون ئې په ښکلا او ښه والی یادوی. دَ رنګ او معنې په دې طریقو کښې دغه پاس یاد کړے شوے هغه زیاتے هغه څیز دے کوم ته چې مونږ مقصد وایو. اوس نو کتل دا دی چې دَ فن دپاره مقصد ضروری دے او که نه. دَ دې څیزونو دپاره به مونږ یو ځل بیا دَ ارسطو دَ فن تعریف ته ځو او بحث به پرې کوؤ. ارسطو وائی چې فن نقل دے، دَ څه نقل دے؟ دَ څیزونو، دَ فطرت او دَ قوت متخیله یا صرف تخیل. فنکار دَ تخلیق نه اګاهو په شعور او

تحت الشعور کښې داسې ځيزونه لرې چې هغه ته دَ تخليق نغوته ورکوی. دغه عکسونه چې هغه بيانوی يا ښکاره کوی نو دې بيان يا اظهار سره دَ ځيزونو يا عکسونو هغه علم هم شامل وی کوم چې دَ فنکار ذاتی وی. دَ فنکار دې ذاتی علم کښې دَ هغه تنقيدی حس هم شامل وی کوم چې دغه عکسونه خوښ کړی يا غندلی وی او دَ غندلی شوؤ ځيزونو متبادل يا دَ هغوی نه ښه عکسونه ئې هر څو که دَ هغه مشاهده کښې نه وی راغلی ورته ټاکلی وی. اوس چې فنکار اظهار کوی نو هغه به دغه علم او حس په کار راولی او ځيزونه به داسې ښکاره کوی لکه چې هغه ته ښکاری يا لکه څنګه چې دَ ده دَ خيال مطابق پکار وو، چې وے. مثال به ئې داسې وی چې فنکار په يو ځائې کښې ګلونه وليدل دَ ګلونو رنګ او معنې يعنې رنګ او بوئی نه متاثره شو او دَ هغه نفسياتی کيفيت اظهار ته مجبور شو کوم چې په ده طاری شوے وه نو دَ دې اظهار دوه طريقې وی، يا خو به ئې دې داسې ښکاره کوی لکه چې څنګه پکار وو چې ده ته ښکاره شوے وے ګلونو سره خوا کښې بې ځايه وابښه هم وو چې ډېرو ځايونو کښې ئې دَ ګل مخ پټ کړے وه او فنکار دَ مشاهدې دپاره دَ دغه ګلونو نه وابښه لرې کول په ځان فرض کړی وو. اوس هغه وړومبے کار دَ کېمرې دے او ظاهره ده چې کېمره تخيل نه لری نو هغه به ئې هم هغسې ظاهروی لکه څنګه چې وی. فنکار تخيل لری هغه به ئې دَ خپل تخيل په سبب دغه ګل دَ اصلی نه هم زيات ښکلے ښکاره کول غواړی او چې هغه داسې کوی نو هغه به هغه اصلی نظاره څه کموی يعنې وابښه او هغه نور ځيزونه چې دَ ګل او دَ سترګو تر مېنځه راتلے شی به ترې لرې کوی

او دا کمے به څه زیاتے ورکوی هغه زیاتے ښکلا ده او دغه ښکلا مقصد دے.

دلته یو سوال کېدے شی چې فنکار دَ تخلیق دپاره فطرت کښې تغیر راولی؟ او دا ځکه چې فطرت دَ تعمیر نه زیات تخریب ته مائل دے، یا که زه خپل الفاظ نرم کړم نو دَ نظم نه زیات بدنظمی ته راجع دے. دَ فطرت دَ دې خاصیت نندارہ دَ ماشومانو دَ طبیعت دَ تجزیې نه ښه کېدے شی او چې څه ته مونږ شرارت، شوخی او وران کاری وایو هغه دَ فطرت دَ دغه خاصیت مظاهره ده دَ تنقید یا دَ مور هم دغه فرض دی چې هغه فن یا بچے دَ فطرت دَ دې کږلیچونو نه وساتی او دغه مقصد دے.

فن که دَ ژوند نقل یا ارسطاطالیسی معنیو کښې دَ ژوند دوباره پېش کول Reproduction or representation وی او دا مونږ ومنو (او بغېر دَ منلو بله لار نشته) نو بیا خو فن کښې دَ مقصد اهمیت نور هم زیات شی او هم دغه نسبت سره ئې ثابتول هم اسان شی ځکه چې ژوند پخپله مقصد دے او چې فنکار ژوند جوتوی نو مقصد به ئې خواه مخواه څرګندوی. دا خبره به لږه نوره هم اسانه شی که مونږ دَ ارنلډ دا نظریه ومنو چې فن پخپله ژوند دے. نو هرکله چې ژوند مقصد لری او مقصد ورسره ضروری دے نو دغسې فن هم چې دَ ژوند حصه ده دَ خپل ځان دپاره مقصد ضروری ګڼی.

فنکار چې کوم وخت تخلیق کوی نو هغه وخت هغه دَ خپل ذهن نه تخیل یا دَ ښه او بد او دَ زښت او ښکلی فرق نه شی بیلولے او چې دا نه شی کولے نو هغه به دَ تخلیق په وخت دَ خپلې مشاهدې چې

هغې کښې تخيل هم شامل دے مطابق اظهار کوی نو دغلته به فن کښې مقصد راشی او هرکله چې دَ ښه او بد او دَ ښائست او ښکلی دا تميز په هر معقول انسان کښې وی نو هر فنکار به دَ تخليق په وخت دَ خپل ځان مخکښې يو مقصد ګڼی چې دَ هغې په رڼا او مطابقت کښې به هغه خپل تخليقات خيروی.

که داسې نه وی او فن دَ يو مقصد دَ لاندې وی نو بيا دوه صورته کيدے شی اول دا چې فن باطل دے او افلاطون چې کوم تنقيد په فنکار کړے دے هغه بالکل صحيح دے. دا رښتيا ده چې فنکار مونږ دَ خپلې وينا، حرکت او ساز په ذريعه دَ حقيقت نه لرې بوتلل غواړی. دا هم رښتيا ده چې فنکار مونږ صرف دَ نظر او سماعت په فريب غولول غواړی او دا هم واقعه ده چې هغه زمونږ جذباتو سره لوبې کوی او دَ ارسطو دا خبره بالکل غلطه ده چې فنکار دَ حقيقت نقل نه بلکې اصل حقيقت ښکاره کوی. هغه زمونږ دَ صحت دپاره زمونږ نظر، سماعت او متخيله خوشحالوی او زمونږ دَ جذباتو دَ تطهير دپاره زمونږ جذباتو کښې هيجان ضروری ګڼی. په داسې صورت کښې افلاطون په حقه وه چې فنکار ئې دَ خپل خيالی رياست نه جلاوطن کولو او که داسې نه وی نو دويم صورت دا دے چې فن پخپله مقصد دے که چرې فن پخپله مقصد وی نو دَ فن دَ يوادنی طالب علم په حېثيت په دې نظريه زما درې اعتراضه دی اول دا چې دَ دې مقصد دَ حصول نه پس ته به دَ فن دَ طالب علم څه مقصد وی، ځکه چې زمونږ نه وړاندې يواځې پښتو کښې نه بلکې په نورو ژبو کښې ډېر داسې مثالونه شته دے چې فنکار خپل فن کمال ته رسولے

دے. غن تر دي چې مونږ ئې نن په شلمه صدی کښې دَ مثال او دَ تقلید دَ نخښې په طور پېش کوؤ. دوېم اعتراض دا دے چې که فن مقصد شي نو زمونږ ذهني روحاني یا مادی کوم ضرورت به ترې پوره شي یا لږو نورو ښو الفاظو کښې به کوم اخلاقی مقصد پوره کړی او. اخری او حقیقت کښې دَ ټولو نه لوئے اعتراض دا دے چې په داسې وخت کښې چې دَ فن نه دَ یوې اخلاقی معاشرتی نظریې دَ اشاعت دَ وسیلی کار اخستل ممکن وی دا کومه ښه خبره ده چې مونږ فن پخپله مقصد وګڼو ځکه چې دغه مقصد اخلاقی لحاظ سره دَ فن نه لوئے دے او دَ لوئی مقصد په موجودګی کښې ورکوتے مقصد خپلول او دَ لوئی مقصد نه ورته زیات اهمیت ورکول غېر اخلاقی فعل دے.

فن لکه چې ما عرض کړے دے دَ انسان دَ تخیل او جذباتو ژبه ده چې انسان ئې دَ یو خاص کېفیت یا تاثر دَ اظهار دپاره او په مخاطب دَ دغه کېفیت یا دَ تاثر عمل کښې دَ شدت راوستلو دپاره پکاروی. نو لکه څنګه چې ژبه دَ اظهار آله، ذریعه او وسیله ده نو هم دغسې فن هم دَ یو مقصد دَ ښکاره کولو او دَ دغه اظهار په ډېره ښه طریقه دَ کولو یوه وسله ده. اوس چې تر څو دغه وسله زنګینه ده پخه ده او ځکه بېکاره ده نو تر هغه وخته دا زمونږ دَ مقصد په مفادو کښې ده چې مونږ دغه وسله عین مقصد وګڼو. زنګ ترې لرې کړو، صېقل ئې کړو او په کار ئې راولو. خو دَ دې مطلب به هیڅ وخت کښې دا نه وی چې مونږ هغه اصلی مقصد دَ نظر نه یا دَ ذهن نه لرې کړے دے. دَ وسلې حقیقت هم هغه دے لکه چې وه، البته دَ مقصد مفادو کښې مونږ دا ضروری ګڼو چې دغه وسله وسیله او آله دې

داسې وی چې دَ مقصد لار کښې په ښه طریقه استعمال شی.

چې فن مقصد نۀ دے بلکې صرف ذریعه یا وسیله ده نو اوس کتل دا دی چې دا وسیله دَ کوم مقصد دپاره استعمالول پکار دی یعنې دَ فن مقصد څۀ دے یا څۀ پکار دے؟

ارسټوفینز دَ یونان مشهور او وړومبے طربیه لیکونکے په خپلې طربیه "چیندخان" کښې دَ یو کردار په خلۀ "یوروپے ډیز" نه دا پُښتنه کوی.

"راشه ماته دا وښیه چې یو شاعر په کومو بنیادونو دَ ستائنې وړ دے". دَ یونانی تنقید په تاریخ کښې دا سوال او دَ دې ځواب ډېر لوئې اهمیت لری ځکه چې شعوری طور سره وړومبے ځل دَ شاعر اهمیت ښکاره کوی. "یوروپے ډیز" وائی:

"کۀ دَ هغۀ فن رښتونے وی دَ هغۀ صلاح درسته وی او هغه قوم ته څۀ مدد رسولے شی. په دې طریقه چې (دے) خلق تر څۀ حده یا ځنو خبرو کښې ښۀ کولے شی."

د یوروپے ډیز" دَ نظریې مطابق.دَ فن مقصد دَ خلقو ښۀ کول دی چې قوم ته پرې مدد ورسی هم دَ دې نظریې په رڼا کښې افلاطون شاعران رټلی دی هغه وائی چې هر کله شاعران دا مقصد نۀ شی پوره کولے نو ځکه هغوی دَ هغۀ ریاست کښې دَ وسېدو اهل نۀ دی.

دَ افلاطون نه پس "لان جائے نس" دَ فن په مقصد بحث کړے دے هغه وائی چې فنکار خطیب نۀ دے چې خلقو ته دې وعظ کوی. دَ فن مقصد صرف حسن او دَ دې دَ ښکاره کولو نه پس ته حاصلېدونکې خوشحالی ده. لان جائے نس دَ افلاطونی مقصد رښتیا، ښکلا او صحت

نـه صـرف ښکلا راخستـې ده او هغـه ئـې دَ فـن مقصـد ګرځـولے دے. ارسطو دَ افلاطون شاګرد خپل استاذ سره اختلاف کړے دے هغه دغـې درې اصولو سره دَ خوشحالۍ یا مزې ځلورم اصول زیـات کړے دے او دغه ته دَ فن مقصد وائي. هغهٔ دَ لان جائے نس او دَ افلاطون نظریه تر څهٔ حده یو ځائې کړې ده او وائي چې دَ افلاطوني مقصد تر سره رسولو دپاره دَ لان جائے نس اصول ډېر زیات ضروری دی.دَ دوی نه پس ته پهٔ هره زمانه کښې نقادانو دغه دوه مدرسو کښې یو سره دَ تعلق ساتلـو پهٔ وجه خپلو کښې بحثونه کړی دی. ډرائیډن، جان رسکن او اسکروائلډ او په اوسنۍ زمانه کښې ټی ایس ایلیټ دَ دې نظریو ځلور لوئے نقادان دی. دغه وړومبی دوه ښاغلی افلاطوني ارسطاطالیسي مدرسې سره او وروستی دوه ښاغلی دَ لان جائے نس دَ خیال سره تعلق لری.

مـارکسی لیننی تنقید دَ "یوروپے ډیز" دَ تنقید ارتقائي صـورت دے. مـارکس او لینـن فـن دَ عوامـو دپـاره ګڼـی او انقلاب او دَ غیـر طبقاتي سماج قیام او استحکام ئې مقصد شماری ډا هـم هغـه "ځنـې خبرو کښې ښهٔ کول" دی چې "یوروپے ډیز" ئې دَ فن مقصد ګڼی.

البته مارکس او لینن پرې دا اضافه کړې ده چې هغوی فنکـار ځنو خبرو یا ځنو کارونو کښې دَ ښهٔ والي مبلغ نهٔ منی بلکې دَ ټـول ښهٔ والي دَ اشاعت ضروری وسله ئې ګڼی. او بله دا چې "یـوروپے ډیـز" طبقاتي شعور نهٔ لرلو یا داسې به ووایو چې هغه وخت کښې دَ طبقاتو تر مېنځه جنګ دومره ګرم نهٔ وهٔ لکه چې دَ مارکس او لینن په ورځو کښې دَ یورپ او دَ روس پهٔ سرمایه دار او جاګیـری سماجونـو کښـې دَ مختلفو طبقو تر مېنځه ګرم وهٔ او اوس هـم دے. دَ مارکسـی لیننـی

تنقید بنیاد په طبقاتي شعور دے، دَ دغه تنقید په رڼا کښې دَ فنکار مقصد دا متعین کړے شوے دے چې هغه دې دَ خپل فن په ذریعه پـه پرزولې شوې طبقه کښې طبقاتي بېداري او دَ یو ځائې کېدو پـه ګډه دَ طبقاتي جدوجهد کولو شعور او روح پېدا کړي. دَ پرزولې طبقې کسـان او مزدور ملا دې مضبوطه کړي او دَ یو داسې سماج دَ جوړولـو دپـاره دې خپل فنی قوتونه پکار راولي چرته چې طبقـات نـه وي او انسانـی ذهن ته سکون او اطمینان وي. مقصد که هر څه وي که افلاطوني مـا بعدالطبیعاتي مقصد وي او که دَ ارسطـو مـادي مقصـد او کـه دَ لان جـائے نـس او اسکـروائلډ لذتیاتـی Hedonicمقصـد وي او کـه دَ مارکس، انیګلز او لینن جدلي مقصد، خو فن دپاره داسې خوځونکے او حـرکت ورکـونکے مقصـد ډېـر ضـروري دے چې هغـه لکـه دَ ذریعـې استعمال کړي دا دَ لُستونکیو خپله خوښه ده چې هغه کوم مقصد غوره ګڼي او ځان ورسره تړي خو که داسې مقصد دَ ژوند دَ ژوندي کولو او دَ سوکالۍ دپاره دَ تلوسې عناصر ځان کښې لـري نـو هغـه بـه یقینـاً دَ لُستونکیو دَ ډېرې لویې طبقې خوښ وي او هغوی به په خپلـو مفـادو کښې دا ضروري ګڼي چې ځان ورسره وابسته کړي.

(لار پېښبور درېم کال ١٩٥٧ء)

# فن او اخلاق

مونږ چې دا ومنو چې فنکار لره دَ فن دَ پېدا کولو نه مخکښې ځان ته يو مقصد ابښودل پکار دی نو هم هغه وخت دَ فن او اخلاقو سوال زمونږ ذهن ته راشي. ځکه چې دَ مقصد په تعين کښې مونږ خواه مخواه دَ اوچت ټيټ ښه او بد فرق کوو او چې دا فرق مونږه کوو نو هغه وخت زمونږ ذهن دَ اخلاقو دَ تقاضو لاندې سوچ کوی.

دې سره سم دَ فن په حقله يو ډېر بنيادی سوال هم ذهن کښې پېدا کيږی او هغه دا چې دَ فنکار عمل څه پکار دے آيا دے به دَ موجوداتو او دَ ژوند صرف عکاسی کوی يعنې دے به صرف دَ کېمرې کار کوی او که نه دے به موجوداتو او ژوند له هغه رنګ ورکوی کوم چې دَ ده ذهن کښې دے. يعنې دَ مصور کار به کوی دا سوال ځکه مخې له راځي چې که مونږ دا ومنو چې فنکار صرف دَ څيزونو عکس برخيره او ښکاره کوی نو بيا خو دَ ده حېثيت دَ يوې کېمرې شو او ظاهره ده چې دَ کېمرې مشينی سترګه دَ څيزونو دَ عکس اخستو په وخت دَ ښه او بد تقاضې مخې ته نه شی ساتلے. که دَ کېمرې مخې ته ښه عمل يا څيز راغے او که بد عمل يا څيز هغه به ئې تصوير اخلی.

دا خبره خو به دَ مشين په حقله مونږ ومنو ځکه چې مشين

ذهن نه لري خو دَ ذهن خاوند فنکار چې څه وخت څیزونه بیانوی او ښکاره کوی هغه وخت به هغه دَ خپل ځان نه دَ ښه او بد هغه فرق چې ډېرې مودې راسې دَ ده ذهن کښې اخښلے شوے راغلے دے څنګه لرې کولے شو.

دَ فنکار تخلیق به خواه مخواه دَ هغه دَ ذهن دَ هغه دَ ردعمل نه متاثره کېږی کوم چې دَ یو څیز په لیدو سم دَ هغه ذهن کښې شروع شی او چې پکښې یواځې دَ دغه څیز دَ کتلو تاثر نه بلکې دَ کلونو جمع شوی دغه څیز سره متعلق نور خیالونه او تاثرونه هم کار کوی. نو نتیجه دا شوه چې فنکار به دَ تخلیق په وخت یواځې دَ بصارت نه کار ناخلی بلکې بصیرت به هم پکاوری او چې دے بصیرت پکاروی نو دا به فیصله کوی چې دا لیدلے شوے څیز ښه دے او که بد او که بد دے نو څنګه او په کومه طریقه ښه کېدے شی. کوم خلق چې صرف دَ دې قائل دی چې دَ فنکار وظیفه دا ده چې هغه مونږ دَ موجوداتو او دَ ژوند نه خبر کړی. هغوی سره دَ دې څه ځواب دے چې که فنکار یو بد څیز وګوری او هغه بیان کړی نو ظاهر کښې خو به هغه خپله وظیفه پوره کړی وی خو حقیقت کښې به دغه بیان او تخلیق نامکمل وی. ځکه چې دا پاس ذکر شوے مقصد پخپله هم نامکمل دے. اخر فنکار مونږ دَ موجوداتو یا دَ ژوند دَ مختلفو حالاتو واقعاتو او مسئلو نه ولې خبروی. ظاهره ده چې هغه مونږ صرف دَ دې دپاره نه خبروی چې مونږ خبر شو بلکې دَ دې دپاره مو خبروی چې مونږ دغه څیز قبول رد یا مترقی کړو او چې کوم فنکار مونږ ته خپله فنپاره دې شکل کښې یا دَ دې غرض دپاره پیش کوی هغه دَ اخلاق دَ تقاضو

لاندې فن پېدا کوي.

او که څوک دا وائي چې داسې خو فن او پروپېګنډه کښې څه فرق پاتې نه شو ځکه چې پروپېګنډه هم کټ مټ هم دغه مقاصد لري او چې فنکار دَ مقصد لاندې فن پېدا کوي نو وعظ کوي نو زه به په ډېر ادب دَ داسې خلقو په خدمت کښې عرض وکړم چې دَ فن او پروپېګنډې ترمېنځه فرق کول دَ مقصدي فن پېدا کونکيو په اصول او مقصد اعتراض نه دے بلکې دَ غلط او غېر ادبي او غېر فني ستائل لرونکيو په تخليق اعتراض دے. ځکه چې دا کېدے شي بلکې يقيني ده چې يو مقصدي فنکار دَ مقصد لاندې کوم فن پېدا کړي هغه فني نقطهٔ نظر سره ډېر اوچت او دلچسپ وي. دَ دې په مقابله کښې يو غېر مقصدي فنکار که غېر فني او کم پايه فنپاره پېدا کړي نو مونږ به په دې وئيلو او فېصله کولو مجبور يُو چې دَ مقصدي فنکار دغه فنپاره په فني اصولو هم دَ دغه غېر مقصدي فنکار نه عظيمه ده. مطلب دا چې فن او پروپېګنډه مخالف نه بلکې موافق کېدونکي څيزونه هم دي. او کوم څيز چې فن او پروپېګنډه خپلو کښې بيلوي هغه پخپله دَ فن فقدان هم دے. کوم څيز ته چې دغه بناغلي نقادان پروپېګنډه وائي هغه دَ ډېرو ليکونکيو دپاره دَ هغوی دَ عظمت نخښه ده. ګورکي خپل فن دَ ژبلې او پامال شوې لاندينې طبقې مفاد دَ مقصد په حېثيت ښکاره کړې دي. وکټر هيوګو، ډکنز، سوفټ او عن تر دې چې ورجل او هومر هم دَ فن دَ تخليق نه مخکښې ځان ته څه مقصدونه اېښودي وو. دَ هيوګو او ډکنز مخکښې دا مقصد دَ خپلې زمانې دَ معاشرې اصلاح وه. دغسې سوفټ ته خپله معاشره بده

ښکارېده نو دَ هغې معاشرې مقابله کښې هغه دَ للی پټ او دهوئی نهم ښکلې معاشره خپل لُستونکی ته وړاندې کوی. او ورجل او هومر دَ خپلو وطنونو دَ زمانهٔ شجاعت قصې خپلو لُستونکیو ته په داسې انداز کښې کوی چې دَ هغوی وینه گرموی او دَ خپلو تخلیقاتو په تار دَ هغوی حال او مستقبل دَ هغوی ماضی سره تړی او په دې طریقه دَ هغوی دَ اصلاح کوشش کوی. اوس که دا دَ اصلاح کوشش په داسې طریقه وی چې دَ فن اصول پکښې هېر کړی شوی وی نو بیا پروپېگنډه ده او دا خو دَ هر لیکونکی دَ لیک شان انفرادیت دے چې هغه دَ ښه او بد تفریق څنگه راولی آیا هغه مونږ ته بد ډېر بد ښکاره کوی او داسې مو ترې ساتی یا ښه راته ډېر ښه ښکاره کوی او ورته مو پسخوی یا ښه او بد راته دَ لرې نه په داسې طریقه ظاهروی چې مونږ ترې دَ خپل اخلاقی نقطهٔ نظر دَ لاندې خپلې نتیجې مرتبې کړو. نو فن او پرزېپگنډه دَ اسلوب او لیک شان په اصولو یو دَ بل نه جدا دی دَ موادو په حېثیت نه. دَ دې بحث نتیجه دا شوه چې فنپاره کښې دَ پروپېگنډې اثر او نفوذ تر هغه حده پکار دے تر څو چې فن اجازت ورکوی خو دَ دې مقصد هیچرې دا نه دے چې فن لره په مقصد باندې فوقیت ورکول پکار دی. فن او مقصد خپلو کښې گنډل پکار دی. نه مقصد هېرول پکار دی نه فن. ځکه چې که فنپاره کښې فنی تقاضو ته ونه کتے شی نو دغه فنپاره که نور هیڅ نه وی نو پروپېگنډه خو به وی ولې که مقصد په کښې هېر شو نو بیا خو هډو فن نه دے. دا ځکه چې دَ فن تصور دَ مقصد نه بغېر ناممکن دے.

او چې څنگه دَ فن تصور دَ مقصد نه بغېر ناممکن دے هم

دغسې دَ مقصد تصور دَ اخلاق نه بغېر ناممکن دے کارلائل وائی:

"که دَ انسان لاسونه نه وے نو کېدے شوه چې پښې ئې وے او دې پرې ګرځېدے خو بغېر دَ اخلاق نه دَ هغه دپاره علم حاصلول او دَ څيزونو په ماهيت پوهېدل ناممکن دی يو بالکل غېر اخلاقی سړے په هيڅ څيز هم نه شی پوهېدے. په يو څيز داسې پوهېدل لکه چې څه ته پوهېدل وائی بغېر دَ دې نه نه شی کېدے چې انسان دې اول دغه څيز سره مينه پيدا کړی او ځان دې ورسره په ربښتينو معنو کښې متعلق کړی او دا واړه بغېر دَ اخلاق نه شی کېدے."

لکه څنګه چې ما کنايتاً مخکښې عرض کړے دے دَ افلاطون او دَ هغه دَ مکتب فکرونو دَ پوهانو په فنکار يو الزام دا هم دے چې فنکار اخلاقی تقاضو لاندې فن نه پېدا کوی بلکې دَ هغه دَ فن له کبله اخلاق خرابېږی نو ځکه فنکار وطن کښې دَ پرېښودو نه دے.

کېدے شی چې دَ افلاطون دَ نظر وړاندې هغه فنکاران وو چا چې داسې فن پېدا کولو او افلاطون دغه وچو سره لوانده هم سوځولے وی خو ډېره يقينی دا ده چې لکه څنګه ارسطو وئيلی دی چې افلاطون خپله تجزيه کښې غلطی کړې وه کوم عمل ته چې افلاطون غېر اخلاقی وائی هم هغه عمل ارسطو عېن اخلاقی ثابت کړے دے. دلته فن کښې دَ اخلاقو دَ ابدی تعين سوال راشی. چې غېر مقصدی نقادان ئې خپل

حمایت کښې پېش کوي. دوی وائی چې هرکله اخلاقي قدرونه بدلېږي رابدلېږي نو فن دَ يو داسې څيز تابع کول چې هغه هر وخت بدلېدے شي ښه خبره نۀ ده. دَ دې مقابله کښې دَ مقصدي نقادانو وېنا دا ده چې کائنات هر وخت بدلېږي او چې کائنات بدلېږي او ترقي مومي نو هغه تاسو چې ورته خبرول وایئ نو هغه کېږي کنه. نو لکه څنګه چې يو اخلاقي قدر دائمي او ابدي قدر نۀ شي کېدے دغسې هغه Object چې تاسو ترې خلق خبرول غواړئ دَ هغې ماهيت هم دائمي او ابدي نۀ دے.

ډرائېډن او ټول نيو کلے سے سستهس سره دَ اخلاقو ګډون نه صرف ضروري شماري بلکې دَ اخلاقو تقاضا پۀ فن حکم ګڼي. دَ دې يوه وجه دا هم ده چې دَ نيو کلے سے سستهس پۀ ذهن کښې چې دَ مقصد کوم تصور وو هغه کټ مټ اخلاقي وو او دوی به چې دَ خپل فن مقصد ظاهرولو نو وئيل به ئې چې دَ فن مقصد دا دے چې دَ اخلاقو دَ اوچتوالي دپاره کوشش وکړے شي. دوی دَ ژوند نور مسائل اخلاقو کښې نۀ شمارل. او هم دغه وجه ده چې جان رسکن (۱۸۱۹ـ۱۹۰۰ء) ئې پۀ دې ليکلو مجبور کړے وو:

"دَ فن نتائج (يعني فنپارې) پخپله دَ ستائنې او خوښېدو څيزونه وی او خپل ځان پخپله دَ خوښېدو جوګه کوي. دا (دَ فن نتائج) هيڅ کله هم تابع کول نۀ دی پکار. دَ ژوند تابع کولو نه زما مطلب دَ ژوند دَ هغه حصې تابع کول دي چې کور زمکه خوراک او جامو سره تعلق لري."

اوس کتل دا دي چې کور، زمکه، خوراک او جامې دَ خپل ځان دپاره غوښتل خو یقیناً اخلاقو سره تعلق نهٔ لري بلکې یو فطري مطالبه ده او کهٔ دَ سړي خوښه وي او کنه دغه څیزونو ته دَ هغه ضرورت وي او ځکه ئې اخلاقو سره څهٔ تړون نشته. ولې کهٔ هم دَ دغو څیزونو دَ نورو انسانانو دپاره خواهش وکړے شي نو دا به عین اخلاق وي ځکه چې فرد دَ دغو څیزونو پهٔ خواهش کولو او خواهش نهٔ کولو کښې ازاد دے او چې هغه دا خواهش کوي نو اخلاقي عمل کوي ځکه کهٔ دا څیزونه پهٔ دغه رنګ کښې فن کښې ځائې کړے شي نو دا به یقیناً اخلاقي تقاضو سره سمون خوري.

دَ جان رسکن نقاد سکاټ جېمز کهٔ یو خوا جان رسکن سره پهٔ دغه بره ذکر شوې خبره کښې اتفاق کوي نو بل خوا دا رائې هم ظاهروي چې.... "فن کار کوم وخت فن تخلیق کوي هغه وخت دې هغه دغه فنپاره یا اخلاقي قدر پهٔ اصولو نهٔ کچ کوي دا بیله خبره ده چې دَ تخلیق نه پس ته دغه فنپاره دَ یو مقصد یا اخلاقي قدر تبلیغ کوي."

یعنې دَ ښاغلي سکاټ جېمز مطلب دا دے چې فنکار خو دې خپله فنپاره دَ کوم مقصد پهٔ رڼا کښې نهٔ تخلیق کوي البته کهٔ لُستونکي یا لیدونکي یا په نورو الفاظو کښې نقادان پکښې څهٔ اخلاقي مقصد مومي نو باک ئې نشته. یعنې صفا ټکو کښې ښاغلے سکاټ جېمز دا حق صرف نقاد ته ورکوي چې هغه دې پهٔ فنپاره کښې دَ تنقید پهٔ وخت دا ګوري چې دې فنپارې دَ کوم اخلاقي مقصد خدمت او اشاعت کړے دے او کنه او دَ فنکار نه دا حق شوکوي.

فنکار دَ تخلیق پـه وخت هـم انسـان وی او انسـان هیـڅ حـال کښې دَ خپل ځان نه خپل قوت متخیله دَ ښو بدو شعور او وجـدان نــه شی منفی کولے. هغه چې کوم وخت دَ یـو څیـز نـه الهــام Inspiration اخلی هم او کـه بیا دغه څیز بیانوی هم هیڅ حال کښـې خپـل شعـور دَ ځان نه بیلولے نـه شی. دا وېنا درسته نـه ده چې یـو شاعـر کـوم وخت خپله فنپاره تخلیق کوی نو هغه به صرف مجرد جذبه وی نـور څـه نـه. کوم وخت چې فنکار تخلیق کوی نو دَ هغـه دَ جذباتـو شـدت کـه هـر څومره زیات وی یا دَ هغه جمالیاتی حس کـه هر څومره تیـز وی هغــه به دَ خپل شخصیت او انا نور اړخونه او مظاهر هم قائم ساتـی او چـې څومره دَ هغه دَ شخصیـت او دَ فـن پـارې تـر مېنځـه زیـات تړون وی دومره به هغه فنپاره اوچته او عظیمه وی.

(میاشتینے ننګیالے پېښور جولائی ۱۹۵۷ء)

# د لار د ۱۹۵۷ء نظمونه

ادب دَ یو قام دَ مسلسل ژوند او د هغه د ارتقاء آئینه ده چې ترې دَ دغه قام دَ ذهنی او معاشرتی ارتقا دَ مختلفو مراحلو علم حاصلیږی نو دَ دغه مسلسل علم نه یو ګال رابهر کول او بیا دغه کال دَ خپل اقتباس نه وبنکل او پرې بحث کول داسې شې دے چې زما په خیال ترې څۀ فائده نه شی رسېدې بلکې عین ممکنه ده چې دَ لُستونکیو ذهن پرې پرېشان شی او هغوی دَ دغه کال دَ ادب په حقله دَ هغې تجزیې په وجه غلطې نتیجې ته ورسی او ګمراهی کښې پرېوځی. دَ ادب تجزیه کول هسې هم ډېر ګران کار دے. ځکه چې ادب دَ زړګونو کلونو دا ورثې دَ ادب، دَ حال د بې اطمینانی یا خوشحالی او دَ مستقبل دَ رڼا یا تیارې پرتو لری. او ظاهره خبره ده چې دا درې متضاد او لۀ یو بله بالکل جدا څیزونه هیڅ کله یو عمل تجزیه نه شی قبلولې. خو دَ اُردو په تتبع کښې زمونږ په ژبه کښې هم بغیر دَ څۀ وجې دا بدعت شروع شوے دے چې دَ کال په ادب تبصرې کیږی او دَ دغه کال هېچرې دَ ژوند په لوئ اقتباس یا دَ ادب دَ ماضی په اقتباس کښې نه شی کتلے. اوس دا خو ممکنه ده چې نقادان دې په یو مخصوص کال کښې دَ ادب څنې واضح رجحانات په ګُته کړی او بحث دې پرې وکړی. (دا هم هله چې دَ مخصوص کال ادب دَ خپل تاریخ دَ اقتباس نه ونه بنکلے شی) خو دا بالکل ناممکنه ده چې دَ مخصوص

کال په ادب دي داسې بحث وشي چې محض دَ دغه کال ادب دې دَ نقاد دَ سترګو وړاندې وی ځکه ما دَ دې مقالې نوم دَ ۱۹۵۷ دَ نظمونو په ځائې دَ "لار" دَ ۱۹۵۷ نظمونه کېښو.

پښتو کښې په ادب نظرياتی تنقيد هسې هم کم دے زمونږ دَ نقادانو اکثريت خو هسې په دې قائل دی چې دَ ژوند او ادب تر مينځه ډېر کلک تړون دے او ادب تل تر تله دَ ژوند نه قوت مومی خو اوسه پورې زما دَ مطالعې نه داسې تنقيد نه دے تېر شوے چې په کښې دَ فن پارې او ژوند تر مينځه دَ تعلق په رڼا کښې بحث شوے وی. زمونږ نقادان دَ فن پارې ظاهری ښکلا نه متاثره کيږی خو دَ دغه فن پارې باطنی او اصل ښکلا باندې هيڅ توجه نه کوی. دا ځکه چې داسې تنقيد کول ډېر ګران کار دے او زمونږ نقادان لا دومره ګران کار ته ځان نه شی ورکولے.

په ۱۹۵۷ کښې چې کوم نظمونه "لار" کښې چاپ شوی دی هغو کښې دَ يو دوه ليکونکيو نه بغېر ټول ليکونکی دَ تکرار مرض کښې مبتلا ښکاری. دَ "لار" دَ ۱۹۵۷ نظمونه دَ تکرار دوه قسمه ښکاره کوی. يو هغه تکرار دے چې لوئ ليکونکی ئې کوی او هر نظم کښې ئې دَ بل نظم سره توارد شوے وی. دوئ چې دَ کال په سر کښې څه وئيلی وی هم هغه دَ کال په اخر کښې هم وائی (او امېد دے چې باقی عمر به ئې هم وائی) داسې دَ دوئ ليک شان کښې يو ډېر ناپسنديده مينرازم Mannerism پيدا شوے دے. دَ اُردو لوئ شاعر او نقاد فيض احمد فيض وئيلی دی چې کوم وخت شاعر په دې پوه شی چې هغه سره دَ وئيلو دپاره څه څيز پاتې نه شو او اوس که هغه څه

وائی نو دَ خپلو زړو خیالاتو تکرار به کوی نو هغه وخت هغوی له پکار دی چې دَ ادب دَ محفل نه پاڅی او ادب نوازو ته سلام وکړی. دا ولې؟ دا ځکه چې که دې داسې ونه کړی نو دا به ادب سره لوئ ظلم وی ځکه چې لُستونکی ادب دې دپاره نه لولی چې په کښې دې بار بار هم هغه ځیزونه ولولی کوم چې دوی یو ځل نه ډېر ځل لُستلی دی. نو که شاعر په خپلو لُستونکیو رحم ونه کړی نو شاعری به دَ لُستونکیو دپاره خپله دلکشی بائیلی نو ځکه شاعر دې هغه وخت نظم لیکی چې دې پوه شی چې دوی سره دَ کولو دپاره څه نوې خبره شته. دَ پښتو ځنې شاعران شعوری یا غیر شعوری طور سره دَ فیض په دې خبره لګیا دی عمل کوی او زما دَ اندازې مطابق که یو څو نور شاعران (هر شاعر دې خپل ګرېوان کښې سر ښکته کړی اول زه او ورپسې نور) هم دغه لار خپله کړی نو په پښتو ادب او شعر به ئې ډېر لوئ احسان وی.

زه دې منلو دپاره تیار یم چې چونکې د ۱۹۵۷ په شروع او اخر کښې دَ ژوند مسائلو کښې څه تبدیلی نه ده راغلې نو ځکه شاعری ئې هم متنوع نه ده. خو دلته زه یو بل مرض هم لرم او هغه دا چې که دَ مسائلو پیچیدګی کښې تبدیلی را نه شی (او دا دَ منلو خبره نه ده چې پیچیدګی دې تبدیلی نه قبلوی) نو د ادیب ذهنی ساخت کښې به هم تبدیلی نه راځی. اخر دَ حالاتو رفتار سره به دَ هغوی مطمع نظر بدلیږی نه او که مطمع نظر ئې نه بدلیږی نو مسائلو ته دَ رسایی طریقه به ئې هم نه بدلیږی. ادیب او شاعر کښې خو دَ ټولو نه زیاته دَ ستائنې خاصه دَ هغوی دَ مشاهدې ملکه ده او که دَ دوی خیالاتو کښې ناکرتیا (جمود) راشی نو تر څو ئې چې بله ښکاره

نفسياتي وجه نه وي نو دَ ادب نقاد به خواه مخواه دا رائ قائموي چې دَ دغه شاعر يا اديب دَ مشاهدې قوت ختم شوے دے.

دَ تکرار دويم قسم چې د ۱۹۵۷ دَ "لار" دَ نظمونو نه ښکاره کيږي هغه نقل دے چې وړو شاعرانو دَ لويو شاعرانو په تتبع کښې شروع کړے دے. زه دا نه وايم چې دَ لويو شاعرانو دَ ليک شان او خصوصيتونو پېروي کول ګنې بده خبره ده که داسې وي نو دا خو به نقص نه وه بلکې خوبي به وه خو افسوس ناکه خبره دا ده چې لوئ شاعر عاجز په خپله هم تکرار شروع کړي نو هغه خپل پېروکار هم تکرار کښې مبتلا کړي. دغه وجه ده چې دَ پښتو دَ شاعرانو په جديدَ کول کښې ځلېدونکے شاعر پيدا کيږي نه. دا خبره دَ ادب دَ نقادانو دَ توجه مستحقه ده چې دَ ۱۹۴۷ نه پس درې څلور کالو کښې چې کوم کول را لوئ شوي دي او دوئ چې کومې اضافې زمونږ شعري ادب کښې کړي دي دَ هغې وجوهاتو کښې يوه ډېره غټه وجه دا ده چې زمونږ شاعرانو محنت پرېښے دے. هغه فنکارانه رياضت ته ئې ملا ماته ده کوم چې دَ لوئ ادب دَ پيدا کولو اکې يوه لار ده. د دې دواړه قسمو تکرارونو خورېدل دَ ادب دپاره ډېر مضر دي او دَ دې ضرر په خورېدو کښې ډېر لاس دَ صحيح او رښتيني تنقيد دَ فقدان دے او دَ صحيح او رښتيني تنقيد دَ فقدان يوه ډېره غټه وجه دا ده چې پښتو کښې دَ ښو ليکونکيو مقابله کښې دَ رسالو او اخبارونو تعداد ګڼ شوے دے. اوس دا خو هم ناممکنه ده چې يو څو نومونه دې بار بار هره رساله کښې چاپ کيږي نو دَ اخبارونو مديران مجبور دي چې هر هغه Trash چې دوئ ته دَ نظم دَ عنوان لاندې راشي چاپ کړي.

دَ نظمونو دَ تکنیک په سلسله کښې هم دا خبره دَ یادولو قابله ده چې په ټول ۱۹۵۷ کښې پښتنو شاعرانو دَ هغه زړې لیکې نه ځان بدل نه کړو. اجمل، طوفان او وهمی زمونږ هغه درې شاعران دی چې پښتو ترې دَ ډېر څه توقع لری. دوئ کښې یو په دې کال کښې دَ نظم په تکنیک څه داسې تجربه ونه کړه چې دَ پښتو پنګه پرې زیاته شی. دا څومره عجیبه خبره ده چې دې کال کښې دَ نظم تکنیک کښې یوه تجربه شوې ده او هغه هم دَ نوی شاعر (هر څو که په عمر زوړ وی) عرب خان دَ لاسه ده. دَ احمد ندیم قاسمی دَ نظم "پابندی" ترجمه ئې ډېره په پابندئ کړې ده (حالانکې ورته ئې صرف اثر وئیلی دی) او ورسره ورسره ئې دَ هغه دَ نظم تکنیک هم ډېر په ښه شان خپل کړے دے.

دَ اجمل نظم "اې دَ رحمان هدیرې" زوړ نظم دے او زما په خیال په ۱۹۵۰ کښې لیکلے شوے دے که نه وی نو هغه هم دَ تکنیک په لحاظ ډېره وچته تجربه ده. طوفان "پښتونستان وطنه" کښې دَ لوک ګیت تکنیک ته ډېر رانژدې شوے دے. وهمی دَ فکر دَ تنوع په لحاظ ځان ښه ښکاره کړے دے. مراد په یو ډېر زوړ تکنیک ډېر ښکلے نظم لیکلے دے. "ادې پښتو" کښې دَ مراد شنواری فن ډېر جوت دے. اګر که دَ نظم دَ ختمولو نه پس لُستونکی ته دا محسوسیږی چې نظم نامکمل دے. زه په دې پوه نه شوم چې دَ غنی غُندې "بت شکن" په "شهید ته خطاب" کښې ولې دومره کن ونشنلConventional شوے دے. ساقی دې کال کښې نظم نه زیاته توجه نثر ته ورکړې ده او نظم که ئې لیکلے دے نو هغه هم منثور دے.

دَ هرمز بن هرمز دَ نظم "شاعر او مطرب" دوېمه حصه (نوره حصه ئې لا نۀ ده چاپ) ډېره جلدی کښې ليکلې شوې معلومېږی.

کۀ دَ دې ذکر شوو شاعرانو نه بغېر ما دَ بل چا نوم نۀ وی اخستے نو زۀ دَ هغو نه معافی غواړم خو حقيقت دا دے چې دَ دغو شاعرانو تخليقاتو به زۀ پۀ دې تاثر اخستلو مجبور کړے يم چې دا نظمونه کم او نقلونه زيات دی.

(مياشتنی "لار" يکم اپريل ۱۹۵۸)

# دَ ژبو مور

دَ پښتو دَ قدامت په حقله دَ پښتو په علمی حلقو کښې مختلفې دعوې کیږی چا له چې خدائې پاک څومره وس او علم ورکړے دے دومره هغه دَ پښتو دَ قدامت وچته دعوىٰ لری. څه موده کیږی چې ښاغلی حبیبی دَ یو ډبر لیک په واسطه دَ پښتو قدامت دَ عیسیٰ علیه السلام نه درې زره کاله اګاهو پورې ورسولو (ښاغلے حبیبی اوس په خپله دا رائې نه لری) دَ دوی نه پس څنې عالمانو د ابراهیم علیه السلام دَ "پښتونولو" کوشش وکړو او څنو خو لا په کښې دا هم ووئیل چې په خپله دَ آدم علیه السلام ژبه هم پښتو وه. غرض دا چې علمی او غیر علمی زیارونه ټول دې ته متوجه شو چې دَ پښتو دَ قدامت ثابتولو دپاره دَ یو بل نه وړاندې شی. حالانکې لکه چې څنګه دَ ښاغلی دوست محمد خان کامل رائې ده اصلی دَ بحث خبره دَ پښتو قدامت نه بلکې دَ پښتو اهلیت دے. په دې به څه وشی که دَ پښتو په حقله دا دعوىٰ ثابته کړې شی چې دا دَ کائنات ژبه ده بلکې دا خبره خو به لا دَ پښتو او پښتون دپاره دَ شرم وی چې یوه دومره زړه ژبه اوس په داسې حال کښې ده چې نه په کښې یو اخبار شته، نه رساله، نه دَ مدرسې ژبه ده، نه دَ سکول، نه د عدالت ژبه ده، نه دَ دفتر، یوه بین الاقوامی غُنډه کښې هم دَ دې ژبې اهمیت نه دے تسلیم شوے او داسې نور او داسې نور.

دَ ماضی پہ حقله غور کول همېشه دَ انسان یوه مشغله پاتې شوې ده. دَ دې فائدې هم شته او نقصان هم. ولې لہ بده مرغه مونږ دَ پښتو دَ ماضی پہ حقله دَ دې مشغلې صرف پہ نقصانونو خبر شوی یو او بس. دَ پښتو دَ قدامت دَ ثابتولو دا مشغله دَ دویم لوئی جنګ پہ ورځو کښې شروع شوه ځکه چې زمونږ لہ بده قسمته هټلر ته دَ یهودیانو دَ خاتمې دپاره دا راياد شو چې جرمن قوم دَ اریائی نسل سره تعلق لری. پېرنګیانو سره دَ دښمنی پہ وجه دَ ایشیا اکثرو قومونو ځان ته آریه وئیل شروع کړل. (حالانکې پېرنګیان هم آریائی نسل سره تعلق لری) او چونکې دَ پېرنګیانو ځنې عالمانو دَ ډېرې مودې راسې دَ معلومې دنیا ژبې پہ دوه ځانګو آریائی او سامی کښې وېشلې وے او پښتو هم پہ دغه بنیاد آریائی ژبه ګڼلې شوې ده ځکه نو دَ آریا ګانو دَ ماضی دَ عظمت نه دَ مرعوبیت پہ وجه دا ضروری شوه چې زمونږ عالمان دا ثابته کړی چې پښتو پہ آریائی ژبو کښې لہ ټولو نه زړه ژبه ده. چا چې دَ انسانی نسل تشریح دَ آریه او سامی پہ اسانو اصطلاحاتو کښې کول غُښتل هغوی دَ انسانی ارتقا پہ حقله یو خاص خیال لرلو او دَ دوی دا تشریح دَ دغه خیال سره مطابق وه. دَ دې عالمانو دا خیال وہ چې انسان پہ اوائلو کښې یو عام حیوان وہ چې یا خوئې ضمیر نہ لرلو او کہ لرلو ئې نو دَ مافی الضمیر دَ اظهار دپاره دَ ژبې پہ استعمال نہ پوهېدو او خپل مطلب به ئې دَ اشارو او حرکتونو پہ ذریعه څرګندولو. دَ دې خیال مطابق انسان دَ تکلم خاصیت ورو ورو او دَ خارجی فطری مظاهرو دَ اوازونو نه زده کړو. دَ سپی غپ، دَ مرغو شور دَ وریځو ګړګوړ او دَ آبشارونو او سیندونو اوازونو انسان کښې دَ

نقل په ذریعه دَ تکلم خاصیت پیدا کړو او دغسې دَ دنیا په مختلفو علاقو کښې ازادې او دَ یو بل سره بې تعلقه (ژبې) پیدا شوے. چې دَ باهمی ربط په ذریعه په کښې ترقی کیده او اخر ئې دَ یوې باضابطه ژبې شکل اختیار کړو.

دا نظریه یواځې په دې غلطه نه ده چې دَ دې دَ منلو په صورت کښې به اشرف المخلوقات دَ اشرفیت دَ کرسۍ نه راپرېوځی بلکې دَ دې دَ غلطۍ یو دلیل دا هم دے چې دا نظریه دَ انسانی ارتقاء په حقله دَ مذهب دَ پیش شوی خیال سره ټغره خوری. زه دلته دَ مذهب دَ حقانیت بحث چېړل نه غواړم ځکه چې دَ مذهب په حقله هر سړے په خپل خیال قائمولو کښې ازاد دے لیکن دَ مذهب دَ حقانیت نه منکر خلق به هم دَ مذهب دَ تاریخی حیثیت نه انکار ونه کړې شی. تر اوسه پورې دَ ټولو نه وړومبے لیکلے تاریخ دَ بائبل زړه عهد نامه ده او دَ بائبل زړه عهد نامه وائی:

" په ابتدا کښې الله اسمانونه او زمکه پیدا کړل* او زمکه ورانه او خالی وه او په مخ دَ زمکې تیاره وه او دَ الله روح د اُبو په مخ رپیدو* او الله ووئیل چې رڼا دې شی نو رڼا شوله* او الله رڼا ولیدله چې ښه ده نو الله رڼا له تیارې نه بیله کړه* او الله رڼا ته ورځ ووئیله او تیارې ته ئې شپه ووئیله نو ماښام او صباح وړومبۍ ورځ شوله*" (پیدائښت باب اول آیات ۱-۵)

په وړومبو دوؤ آیاتونو کښې دَ خدائې پاک دَ عمل ذکر دے ولې په دوېم او پنځم آیت کښې دَ خدائې پاک دَ قول ذکر دے. ظاهره ده چې دا قول به قابل سماعت وه او په یوه ژبه کښې به وه. زړه عهد

نامه کښې مخکښې ذکر راځی:

" او الله هغه فضا ته اسمان ووايه". (پيدائښت ۱:۸)

بيا وائی:

"نو الله انسان په خپل صورت پيدا که د الله په صورت ئې پيدا که * نر او ښځه ئې پيدا کړل* او الله دوی له برکت ورکه او دوی ته الله ووئيل چې بار دار او ډېر شئ او زمکه ډکه کړئ او لاندې ئې کړئ*" (پيدائښت ۱: ۷۲. ۸۲)

قرآن شريف له دې نه هم واضحو ټکو کښې وائی:

**"خلق الانسان علمه البيان"**

(خدائې انسان پيدا کړو او وېنا ئې ورزده کړه.)

**"و علم آدم الاسماء کلها"**

(خدائې پاک آدم عليه السلام ته ټول نومونه ورزده کړل)

نو په دې بنا د مغربی پوهانو دا نظريه چې انسان اوائلو کښې تکلم نه شو کولے محض قياس آرائی ده ځکه چې د تورات او قرآن په رڼا کښې انسان د پيدائش سره سم قوت بيان حاصل کړے وه؟ او چې دا منو نو دا به هم ورسره منو چې دا بيان په يوه ژبه کښې وه او چې دا ومنلے شی نو د ژبې په حقله دا دعویٰ بې بنياده شی چې انسان د تکلم خاصيت ورو ورو او د خارجی فطری مظاهرو د اوازونو نه زده کړے وه.

د سامی او آريائی ژبو تفريق منونکی د خپلې دعوې په ثبوت کښې د مختلفو ژبو تورۍ د دليل په طور پېش کوی. دوی په دې طريقه دا ثابتول غواړی چې چونکې د دوی د خيال مطابق د

آریائی ګروپ دَ مختلفو ژبو تر منځه ډېر توری آهنګی لحاظ سره یو شان دی او دغسې دَ سامی ګروپ دَ مختلفو ژبو توری یو بل سره مشابهت لری نو ځکه دَ دوی په خیال دَ دوی دا تقسیم صحیح او دَ ژبو په حقله رښتینے رهنما دے. حالانکې دا هډو څه قطعی او حتمی دلیل نه دے. اول خو دَ سامی او آریائی ژبو تر منځه په زرګونو توری مشابهت لری دَ مثال په طور:

| (۱) فارسی (آریائی) | عربی (سامی) |
|---|---|
| نګریستن | نظر |
| چراغ | سراج |
| (۲) انګرېزی (آریائی) | عربی (سامی) |
| Track (لار) | طریق (لار) |
| Gloom (تیاره) | ظلمت (تیاره) |
| Call (اواز) | قول (خبره) وغیره وغیره |

او ځکه نو دَ دې لفظونو په بنیاد دا دعویٰ هم ممکنه ده چې فارسی، انګرېزی او عربی دَ یوګروپ ژبې دی حالانکې په خپله دَ دغو پوهانو په خیال فارسی او انګرېزی آریائی او عربی سامی ژبه ده.

او بیا په دې سلسله کښې اهمه خبره دا هم ده چې تر کومه یو سائنسی معیار داسې وضع شوے نه وی چې دَ دې فیصله وکړی چې په دوه ژبو کښې مشترک الفاظ په اصل کښې دَ کومې ژبې توری دی تر هغې پورې محض دَ لفظونو هم آهنګی څه قطعی دلیل نه شی کېدے ځکه چې که زه ووایم چې دَ Grinding توری انګرېزی دَ پښتو دَ توری "ژرندې" نه اخستلے دے نو هم دغسې دَ انګرېزی

عالمان وئيلے شي چې پښتو دا تورے دَ انګرېزي نه خپل کړے دے. په دې طريقه به دَ بحث يوه لامتناهي سلسله شروع شي او پرېکړې فېصله به ګرانه شي. ځکه نو چې تر څو داسې اصول وضع شوي نه وي تر هغې به هره ژبه رجماً بالغېب دَ قدامت دعوىٰ کوي او دَ عالمانو غېر واضح اصول به په خپل تائيد کښې پېش کوي.

دې ضمن کښې دا ياد ساتل پکار دي چې ځنو عالمانو دَ هم داسې مشکلاتو دَ حل کولو دپاره دَ "رېشو" او مشتقاتو اصول منځ ته راوړے دے چې هغه هم په اصل کښې غېر واضح دے. دا عالمان وائي چې په دوؤ ژبو کښې هم آهنګ توري راشي نو دَ توري اصل رېښې ته کتل پکار دي چې هغه دَ کومې ژبې ده. مثلاً دَ فارسي ترکيب )تګ و دؤ" کښې "تګ" دَ پښتو دَ تللو دَ رېښې نه دے نو ځکه دَ دې عالمانو په خيال کښې تګ او دؤ دواړه توري فارسي دَ پښتو نه خپل کړي دي. ليکن، که دَ فارسي عالمان هم راپاڅي او دا ووائي چې دَ تګ رېشه تلل نه دي بلکې تاز ده چې دَ تازي او ترکتاز په کلمو کښې اوس هم موجوده ده نو فېصله کول به ډېر ګران شي.

هم دغسې دَ مشتقاتو خبره هم ده. دَ دې عالمانو دَ خيال مطابق کومه کلمه چې يوه ژبه کښې ډېر مشتقات لري هغه به دَ هغه ژبې کلمه ګڼلې شي. په دې دليل به دَ لاطيني تورے Canon دَ لاطيني نه بلکې دَ عربي ژبې دَ قانون دَ کلمې نه ماخوذ ګڼل کېږي ځکه چې قوانين، تقنين، مقنن او دغسې نور مشتقات لري حالانکې دا هر چا ته پته ده چې دا تورے عربي دَ لاطيني نه اخستے دے.

بيا نو سوال دا پيدا کېږي چې آيا دا بحث به هم داسې روان

وی او کړه نه دَ دې فېصله کولو څه صورت هم شته. زما په رائې کښې دَ دې حل شته لېکن دَ هغې دپاره به اول دا ضروری وی چې مونږ په څنو بنيادی خبرو متفق شو او دَ ټولو نه ښه او متحد بنيادی خبره دا ده چې په يو علمی بحث کښې مونږ دَ اول نه په ذهن کښې دا خيال نه راولو چې دا مونږ چې څه عقيده يا نظريه لرو دا خامخا صحيح ده او زمونږ ټول کوشش دا پکار دے چې دغه عقيده يا نظريه ثابته کړو دا بالکل غېر سائنسی رويه ده او يوه مسئله هم دَ دې رويې په موجودګۍ کښې نه شی حل کېدے.

(د زېر تصنيف کتاب "دَ ژبو مور" يو فصل)

(سيميزين پښتو برخه انجنئيرنګ کالج پېښور يونيورسټی ۱۹۷۰ـ۱۹۷۱)

# مُلا ارزانی

مُلا ارزانی او دَ هغه دیوان زمونږ دَ ادب په سلسله کښې کافی اهمیت لری. دا اهمیت صرف په دې وجه نه دے چې مُلا ارزانی زمونږ ورومبے صاحب دیوان شاعر وه بلکې په دې وجه هم دے چې دَ ده له دیوانه له ده نه پس راتلونکیو شاعرانو نه صرف استفاده کړې ده بلکې دَ دې دیوان په بنیاد ئې ده سره دَ سیالۍ دعوې هم کړی دی. خوشحال بابا وائی:

دَ مرزا دیوان مې ومانړه په ګوډی

مسخره مې ارزانی خویشکے ځمند کړه

هم دغسې دَ رحمان بابا یوه مقطع ده:

دَ مرزا دَ ارزانی دعویٰ به پرې کا

قدردان دَ شاعرانو رحمان راغے

دَ ارزانی یو بل ډېر لوئې اهمیت دا دے چې دے لکه دَ "پټې خزانې" دَ اکثرو شاعرانو دَ یو راوی یا دَ راوی دَ پلار دَ بیان یا دَ چا دَ بیاض په حواله ژوندے نه دے بلکې دَ ده دَ ژوند ثبوتونه دَ ده له مخالفینو او موافقینو دواړو له شهادته ثابت دی. اخون درویزه چې دَ پیرروښان او دَ هغه دَ تعلیماتو سخت دښمن دے ارزانی نه صرف دَ یو عالم او شاعر په حیثیت تسلیموی بلکې تر دې حده مبالغه کوی چې دَ خیرالبیان لیکونکے ئې ګڼی. حالانکې که ارزانی دَ خیرالبیان لیکونکے وے نو خپل کتاب به ئې بل ته نه پرېښنو او دَ اخون درویزه دَ وېنا مطابق به له پیرروښان نه نه خفه کېده او که خفه کېده نو دَ

خیرالبیان خپله حصه به ئې ځان سره هندوستان ته وړله. په دې دَ ارزانی حېثیت دَ تاریخ دپاره ډېر اهم دے چې دَ هغه له دیوانه مونږ ته دا ثابت شو چې هغه یو ځل پیرروښان منلے دے نو بیا ترې اوړېدلے نه دے او تر اخره ئې هم دَ هغه تصوف درس ورکړے دے چې دے له پیرروښانه زده کړے وه.

ارزانی دَ خپل دیوان په ذریعه یوه بله تاریخی غلطی درسته کړې ده. "پټه خزانه" دَ پښتو شاعری تر دوېمی صدۍ هجری رسولې ده خو دَ ارزانی له دیوانه داسې ثابتیږی چې دَ پښتو شاعرۍ تر لسمې صدۍ دومره ترقی نه وه کړې چې دا ترې ثابته شی چې دَ پټې خزانې دَ شاعرانو دَ شاعرۍ نمونې برحقه دی. دَ مثال په طور زه دَ ارزانی داسې شعرونه بیانوم چې پکښې داسې درې سیلابی توری استعمال شوی دی چې وزن کښې به هله راځی چې په غلط ځائې ئې زور ورکړئ. دا شعر وځیرئ :

که طالب ئې مقصود غواړه

له دې افغانی بیانه

دا پښتو خبرې اوره

له دې ارزانی افغانه

اوس دېو دواړو شعرونو کښې "افغانی" او "ارزانی" درې سیلابیز توری دی چې اصل زور ئې په وړومبی سېلاب دے حالانکې دَ ده دیوان کښې داسې شعرونه هم شته چې په دېو توریو په صحیح سېلاب زور ورکړے شوے دے. مثلاً:

ارزاني افغان وکښلې
دَ خپل زړه له تصور ئې

په سېلابونو غلط ځائې کښې دَ زور دا اعتراض په مرزا، دولت او نورو روښاني شاعرانو هم واردیږي نو له دې دا ثابته شي چې دغه وخت دَ پښتو شاعرئ ابتدا وه. دا دَ ارزاني یو ډېر لوئې احسان دے چې یه پښتنو ئې کړے دے او اصل حقیقت ئې واضحه کړے دے.

دَ ارزاني تصوف خو دَ تصوف دَ تاریخ یو داسې باب دے چې اثر ئې په خوارلسمه صدئ کښې دَ حمزه شنواري تر شاعرئ رارسېدلے دے او دَ حمزه مرحوم مکتب فکر به ئې تر ډېره لرې پورې بوځي. انشاء الله ځکه زه ورته صرف اشاره کول کافي گڼم.

دَ موضوع په لحاظ دَ ارزاني یوه بله ورثه قومي شعور دے. دَ ارزاني په دیوان کښې ځائې په ځائې:

ارزاني په پښتو وکښو
دا کلام په څو څو شرحې
دَ فقیر پښتو خبرې
لکه سپینې مرغلرې
ارزاني په پښتو ژبه
ده له زړه وکښو دا شعر
دا پښتو خبرې واوره
له دې ارزاني افغانه

غُندې شعرونه موندے شي دا هم هغه خصوصیت دے چې وروستو خوشحال بابا، رحمان بابا او نورو شاعرانو خپل کړے دے. خوشحال بابا

وائی:

پارسی شعر مې هم زده سليقه لرم دَ دواړو
پښتو شعر مې خوښ کړه هر څوک خپل ګڼي ښاغلی

او دَ رحمان بابا شعر دے:

چې کشور دَ افغانانو معطر شی
دَ هر بيت مصرعه مې زلفې دَ خوبان کړې

حمزه شنوارے وائی:

وائی اغيار چې دَ دوزخ ژبه ده
زهٔ به جنت ته دَ پښتو سره ځم

دَ موضوع نه علاوه ارزانی فارم کښې هم يوه ورثه پرېښې ده چې تر اوسه پرې پښتانهٔ شاعران تجربې کوی. دَ ارزانی ديوان لا چاپ شوے خو نهٔ دے خو چې کومې نمونې ئې لهٔ مختلفو ذريعو نه مونږ ته رارسېدلے دی لهٔ هغو دا ښکاری چې دَ پښتو غزل ابتدا دَ اتو سپلابو دَ مصرعې نه شوې ده. بيا خوشحال بابا او رحمان بابا دا اتهٔ سپلابی مصرعې دَ خپلو قصيدو دپاره استعمال کړې او اکثر ئې لهٔ اتو سپلابونو نه اووهٔ سپلابه کړی دی. دَ خوشحال بابا او رحمان بابا پهٔ پيروی کښې نورو ډېرو شاعرانو هم دا فارم خوښ کړے دے او اګر چې دَ مرزا پهٔ ديوان کښې دَ څوارلسو او پنځلسو سپلابونو مصرعې هم شته خو لهٔ دې انکار نهٔ شی کېدے چې دا هم پښتو ته دَ ارزانی بخښنه ده.

(درې مياشتنی کتابی سلسله مرکه مردان )

# علی خان

دَ علی خان په باره کښې مونږ سره ډېر کم معلومات دی. له ټولو نه اول خو دَ هغه دَ نامې مسئله ده. فاضل ملګری پروفېسر تقویم الحق کاکاخېل دَ علی خان دَ دیوان په مقدمه کښې دا شعر راوړے دے:

زړه به ستا غلبېل کېده علی احمده
چې مدام دې تېرو غشو ته سپر دے

او دَ دې شعر په بنیاد ئې دا دعویٰ کړې ده چې دَ علی خان اصل نوم علی احمد خان وه. له بده مرغه دَ علی خان دا شعر نه دَ سید محمد تقویم الحق کاکاخېل صاحب په مرتب کړی دیوان کښې شته او نه ئې هغه دیوان کښې چې قاضی عبدالسلام صاحب زیارتی له دوئ نه مخکښې په ۱۳۵۸ هجری قمری (دیارلس سوه اته پنځوس هجری قمری) کښې چاپ کړے وه. بیا له دې شعره دا نه ثابتیږی چې دَ علی خان اصل نوم علی احمد خان وه. زیات نه زیات ترې دا ثابتیږی چې دَ علی خان نامه علی احمد وه.

اوس دا حقیقت صرف دَ سید تقویم الحق کاکاخېل نژدې دوستانو ته معلومه دے چې کوم دیوان سره دَ دوئ مقدمه چاپ شوې وه هغه هم هغه دیوان دے چې قاضی عبدالسلام زیارتی صاحب چاپ کړے وه او دَ دوئ خپله مقدمه دَ قاضی صاحب په متن مبنی نه وه

بلکې په هغه قلمي نسخې مبنی وه چې دَ دوی دَ خاندان په کتب خانه کښې وه او دا بره ذکر شوې مقطع دَ سید تقویم الحق کاکاخېل دَ خاندانی کتب خانې نسخې نه نقل شوې ده. دَ دې یوې قلمي نسخې نه علاوه تقویم الحق کاکاخېل صاحب په خپله دیباچه کښې دَ دیوان دَ مختلفو قلمي نسخو دَ راجمع کولو ذکر هم کوی خو له بده مرغه ئې دَ دغو قلمي نسخو هیڅ تفصیل نه دے بیان کړے حالانکې دا ډېره زیاته ضروري وه او خاص طور سره په داسې صورت کښې چې برطانوی، هندی، پاکستانی او افغاني کتب خانو کښې دَ علی خان دَ یوې قلمي نسخې ذکر هم نشته. دَ قاضی عبدالسلام زیارتی دَ چاپ نسخې نه مخکښې ما دَ قاضی محمد یوسف فاروقی دَ یو یادداشت نه دا اندازه لګولې وه چې دَ علی خان وړومبۍ قلمي نسخه هغوی سره وه خو هغوی چې کاتب له دَ لیکلو دپاره ورکړه نو له هغه نه چا پټه کړه. دَ سید تقویم الحق کاکاخېل خاندانی قلمي نسخه هم اوس ورکه ده لېکن دا مقطع دَ پښتو اکېډیمۍ دَ زړو شاعرانو یوه خطي مجموعه کښې سره دَ غزله شته چې زما حافظه که غلطي نه کوی نو مطلع ئې دا ده :

نن زما په زړه ډېره دَ غم لښکر دے

تمامي وجود مې لاندې سراسر دے

دَ علی خان دَ دیوان له چاپ کېدو نه پس شاید چې حبیبی مرحوم په اول ځل "پښتانه شعراء لومړی ټوک" کښې دے نه یواځې خټک وګڼلو بلکې بغېر دَ څه ثبوته ئې ورته دَ کاظم خان شېدا ورور هم ووئیل. په دې مسئله تر ډېره وخته بحث کېدلو چې دغه بحث

کښې مرحوم دوست محمد خان کامل یو خوا او صدیق الله رښتین او سرفراز خان خټک مرحوم له بله خوا سره دَ خپلو خپلو ملګریو حصه واخسته. خو هر کله چې دَ قمبر علی خان نمسیو دَ خپل نیکهٔ مکمل دیوان چاپ کړو نو دَ قمبر علی خان لهٔ یوې مقطعې نه ثابته شوه چې دهٔ خپل هم عصر "مهمنزے" ګڼلو ځکه نو اوس خو دا بحث ختم شو او دا ثابته شوه چې علی خان مهمنزے وهٔ او دَ هشنغر وهٔ. دې نتیجې ته مرحوم کامل مومند مخکښې هم رسېدلے وهٔ دوئ پخپله تحقیقی مقاله کښې دا وئیلی وو (الفاظ زما دی) چې دَ دیوان دَ داخلی شهادت نه دا ثابتیږی چې علی خان دَ هشنغر وهٔ او چونکې دَ هشنغر ابادی پهٔ مهمن زیو مشتمله ده نو تر څو چې بل شان ثابته نهٔ شی علی خان به مهمن زے ګڼو.

علی خان هشنغر کښې دَ کوم ځائې وهٔ دَ دې هیڅ پته نهٔ لګی. دَ هغهٔ لهٔ دیوانه صرف دا ښکاری چې هغه دَ جینډی نَ غاړې اوسېدونکے وهٔ لکه چې وائی:

نهٔ پوهېږم زهٔ دَ چا پهٔ زړهٔ ځکه غلاوهٔ شم
ښنبلے مې ساده صافې اُبهٔ دی دَ جینډی

اوس دَ جینډی پهٔ غاړه دومره کلی او بانډې ابادې دی چې تر څو یقینی طور ثابته نهٔ شی دا دعویٰ څوک نهٔ شی کولے چې علی خان دَ کوم کلی وهٔ او کهٔ داسې دعویٰ چا وکړه نو هم به هغه پهٔ تش اټکل مبنی وی.

هم دغسې دَ علی خان دَ پېدائش دَ کال پهٔ باره کښې دَ هغهٔ لهٔ دیوانه هیڅ ثبوت پهٔ لاس نهٔ راځی او هر چا چې داسې دعویٰ کړې

هم ده نو محض ئې له اندازې او اټکل نه کار اخستے دے او داسې قیاسونه کله کله ډېر ګمراه کن ثابتیږی. دَ علی خان یو شعر دے:

سن دَ هجر غر وه سر دَ کاڼی ترې کمتر وه

ورځ وه دیارلسمه دَ ذی الحجې په تحریر کښې

دې نه دَ قاضی عبدالسلام زیارتی نه واخله تر حبیبی صاحب پورې او بیا له هغه نه تر سید تقویم الحق کاکاخېل صاحب پورې عالمانو دا استنباط کولو چې دا دَ دیارلسمې ذی الحجې ۱۱۸۰ (یولس سوه اتیا هجری قمری) دَ څه واقعې په باره کښې وئیلے شوے شعر دے. حتیٰ چې دَ افغان عالمانو دپاره خو دا کال (۱۱۸۰ھ) زمونږ دَ ادبی تاریخ یوه پیمانه جوړه شوې ده او هر تاریخی قیاس به دَ یولس سوه اتیا پورې یا له دغه مخکښې یا وروستو پورې رسولے شو.

دَ محمدی صاحبزاده په سلسله کښې دَ تحقیق په دوران کښې دا ثابته شوه چې دې شعر کښې بیان شوے کال یولس سوه اتیا ۱۱۸۰ھ نه بلکې دولس سوه شل ۱۲۲۰ھ دے. یعنې دَ "غر" (دولس سوه) کال دَ واقعې نه دَ کاڼی دَ سر (ک یعنې شل) کم دے. چونکې دَ محمدی صاحبزاده دَ وفات کال هم دا دے نو ۱۱۸۰ھ په مقابلهٔ کښې دې نوې تجزیې زاړه قیاسونه ګمراه کن ثابت کړه او سید محمد تقویم الحق کاکاخېل دَ نوی ایډیشن په "یو دوه خبرې" کښې ډېره په سپینه دا ذکر کړے دے او دا توجیه ئې قابل ذکر ګڼلې ده.

دَ علی خان دَ تعلیم او تربیت په باره کښې له دیوانه دا پته لګی چې علی خان ټولو متداوله علومو کښې مهارت لرلو څنې زړو شاعرانو چې دَ علی خان ذکر کړے دے نو ورته اخون زاده علی خان ئې

وئيلي دي او له دي نه دا ثابتيږي چې علي خان په يوه عالمانه کورنۍ کښې پيدا شوے وه.

دَ علي خان ديوان دَ حروف تهجي دَ نوي ترتيب په لحاظ نه دے مرتب شوے. ځکه نو پکار وه چې پروفيسر تقويم الحق کاکاخيل صاحب سره ځومره قلمي نسخې وې دَ هغو په بنياد ئې دَ حروف تهجي په لحاظ بيا له سره مرتب کړے وے او دا ټولې نسخې ئې خپلو کښې مقابله کړے وے خو له بده مرغه داسې ونه شو او اوس دَ دې نمبرې ډېر کم اميد کيدے شي چې دا ټولې نسخې بيا راپيدا شي او بيا ئې خپلو کښې مقابله وشي. ما دَ دربو نسخو سره دَ ديوان مقابله کړې ده او دَ تقويم صاحب دَ نسخې په اميد مې کار اټال کړے دے.

علي خان دَ دوه معاصرو ليکونکيو نه دَ استفادې اعتراف کوي يو ځائې وائي:

زه پيرو دَ محمدي يم هم تابع دَ صاف جامي يم
په دا دواړو پسې ما ده ځـکه کـړې اقتدا دا

دې شعر کښې علي خان محمدي صاحبزاده خپل رهنما منی او دَ جامي ذکر ځکه کوي چې دَ هغه دَ شعرونو ئې پښتو کښې ترجمه کړې ده. وائي:

علي خان چې په پښتو کړه دَ جامي صاحب بيتونه
ګويا ښـکليو جامې وښکې نـوې اغُندي زيبا دا

بل ځائې وائي:

دا هغه قسمه غزل دے چې "صاحب" وې
لــه خــاطره مې ارام او فــراغت لاړ

دَ علی خان دَ دې "صاحب" په باره کښې له ټولو نه اول ما په "پټه خزانه فی المیزان" کښې دا انکشاف کړے دے چې دا "بیاض ګدون" دے چې دیوان ئې اوس اوس چاپ شوے دے او په دغه زمکه کښې غزل لری.

دَ علی خان شاعری له صنائعو بدائعو نه ډکه ده او اګر چې ټول دیوان ئې ۱۴۵ مخه دے اکثره حصه ئې دَ سید تقویم الحق کاکاخېل شرحې نیولې ده لېکن دَ دې باوجود هم پښتو کښې یو انفرادی مقام لری. دَ ده یو څو شعرونه پېش کوم:

چې خورې زلفې زایادې کړم دَ ترکو

جمع زړه هغه ساعت شی خور له ما

دَ رقیب په نغوته ښه خوی دَ یار بد شه

عاقبت په کړه پښه شی سم پېزار کج

حکیمان مې ځکه وینو ته روح وائی

درست په وینو دے لړلے زما روح

دَ عاشق زړه چې خوښ کړے غنم رنګ وه

ورپـــسې لکــــه دانه دَ غـــنم وچاوډ

دَ خُتن تُرکې دې ژر راځی سلام له

نن دَ تخت لائقه تُـرکه باګرامی ده

پلار مې دَ غنم مینې راووېست له جنته

زه لا طمع دار له غنم رنګو دَ وفا یم

دَ یارانو دَ هجران له جور و جرمه

یوه سترګه مې باړه شوه بله کُرمه

دَ کوڅې ګټ به دې پرې نۀ ږدم رقيب ته
اپريدے شوم و مغل ته خبر نيسم

دَ علی خان دې وړوکی غُندې ديوان کښې صرف غزلونه نۀ دی بلکې قصيدې، نظمونه، مخمس، قطعې او رباعيات هم شته او کۀ مکمل ديوان ئې پيدا شو نو شايد چې دَ دۀ دَ شاعری ډېر پټ کُنجونه او ګنجونه رابنکاره شی. هم دغه څۀ مونږ دَ هغۀ دَ نورو ليکونو متعلق هم وئيلے شو. په ديوان کښې دَ شاعری پۀ دفاع کښې لۀ يو مسلسل غزل نه چې ابتدا ئې داسې کيږی:

عالمان شعر پۀ څۀ ګڼی ممنوع
ډېر ابيات لۀ آنحضرته دی مسموع

دا اندازه بې بنياده نۀ ده چې کۀ علی خان نثر ليکلے وی نو تنقيدی مضامين به ئې خامخا لۀ قلمه وتلی وی.

# پښتو ته دَ خوشحال بخښنې

خوشحال بابا چې په پښتو ليک شروع کولو نو دا هغه وخت وے چې په خپله دَ خوشحال بابا دَ اعتراف مطابق "پښتو لا هغسې بکره پرته وه". دَ نثر حال ئې دا وه چې دَ پښتو څه مستند ليک دود نه وه او نه چا دَ ليک اسلوب لرلو. دَ پښتو نثري کوششونه صرف په مذهبي بحث و مباحثې پورې محدود وو. پير روښان دَ خپلې وينا مطابق خپل خيرالبيان دَ سورت رحمان په رنګ کښې دَ ليکلو کوشش څه وکړو چې پښتو ته ئې يو اسلوب ور وبخښلو او تر اوسه زمونږ نقادان دا رائې لري چې دَ پير روښان مسجع او مقفیٰ عبارت دَ پښتو اولنے نثري سبک دے حالانکې لکه څنګه چې وويلی شو دا دَ پير روښان ذاتي اسلوب نه بلکې لکه څنګه چې هغه وائي دَ سورت رحمٰن په طرز کښې دَ ليکلو کوشش وه او لکه څنګه چې سورت رحمٰن دَ "فبایٔ آلآء ربکما تکذبٰن" تکرار او په يو خاص ترتيب واړه واړه اياتونه ليدلی کيږي دغسې دَ خيرالبيان اسلوب کښې هم دَ "په قرآن کښې دي عيان" او "پيغمبر ويلي دي عليه السلام" تکرار او وړې وړې موزونې فقرې راځائې شوي دي لـه دې نـه پـه وروستـه دَ پښتو نثر دَ اسلوب او سبک په حقله څه قطعي او حتمي شهادت نشته يا کم از کم خوشحال بابا ته ئې علم نه وه او ځکه نو خوشحال بابا مجبور شوے دے چې دَ پښتو ادب دغه حالت ته دَ يوې داسې پيغلې سره

تشبیه ورکړی چې چا ئې پلو له مخه نه وی اخستے دا خو د نثر حال وه. د نظم په حصه کښې معنوی طور سره د دې نه هم بد حال وه. په دې حقله خوشحال بابا وائی:

یو په حال او په ماضی کښې هسې نه وه
چې ښکاره ئې د خبرو راته خوند کړ
بندوبست د پښتو شعر ما پیدا کړ
ګنه شعر د پښتو وه غیر سال
نه ئې وزن نه تقطیع نه ئې عروض وو
دوه مصراع ئې د خفیف بحر دوه طال
د غزل نه ئې مطلع نه ئې مقطع وه
نه صفت نه ئې تشبیه نه ئې مثال
پښتو ژبه مشکله د دې بحر مونده نه شی
هم ما لره یو څو بحره په ډېر مښود راغلی

او قریب قریب هم دغه شکایت کاظم خان شیدا په خپل دور کښې د پښتو د کم مایګی په نسبت کړے دے.

خوشحال بابا په داسې وخت کښې د پښتو ادب علم بلند کړو. دې ضمن کښې د هغه عظیمه بخښنه یواځې د هغه نثری او شعری مجموعې نه دی بلکې د پښتو د هغه رسم الخط وضع کول دی چې پوهاند صدیق الله رښتین ورته د خټکو د کورنی لیک دود وائی. او چې خصوصیت ئې دا دے چې د پښتو د هر درونډ توری د پاسه پکښې وړوکے همزه لیکلے کیږی او چې د خیرالبیان د الهامی لیک دود او د موجوده رسم الخط تر مینځه د برزخ کار کوی. په دې حقله

زما ګران او فاضل دوست بناغلی سرفراز خان عقاب خټک دَ کوئټې دَ "ظفر الاسلام" په یوه پرچه کښې ښه درنه او دقیقه مقاله لیکلې ده چې زه ئې محض په حواله اکتفا کوم. دَ لیک دود نه پس پښتو ته دَ خوشحال بابا دویمه لویه بخښنه دَ هغه دَ مشکل پسندۍ دَ رجحان په نتیجه کښې په بحرونو دَ تجربې کوشش دے.

د خوشحال بابا نه وړاندې او دَ پټې خزانې دَ معلومېدو نه اول دَ پښتو اکثره بلکې ټوله شعری سرمایه دَ اووه سپلابیزو او ډېره کمه دَ لس ،سپلابیزو مصرعو دَ شعرونو نه جوړه وه. خوشحال بابا دوه نوی وزنونه دَ پنځلس سپلابیزو او څوارلس سپلابیزو مصرعو په شکل کښې منځ ته راوستل او شاید چې هم دا هغه بحرونه دی چې خوشحال بابا ورته په دې شعر کښې اشاره کړې ده:

پښتو ژبه مشکله دَ دې بحر مونده نه شي

هم ما لره یو څو بحره په ډېر مښود راغلی

د دې دواړو بحرونو په حقله زما ذاتی خیال دا دے چې خوشحال بابا ته دَ دې تحریک دَ پښتو دَ چاربېتو دَ بحر نه شوے دے چې دَ پښتو بحرونو خزانې دی او چې په لږ کوشش ترې نه بېشماره بحرونه وضع کېدے شي. په هر رنګ چې وی ولې دَ پښتو غزل او قصیدې دپاره دَ چاربېتو دَ بحرونو اختیارول هم دَ خوشحال بابا دَ تنوع پسندۍ ثبوت دے او دَ هغه دَ طبیعت دا خاصیت مونږ دَ هغه درېمې بخښنې ته رارسوی چې خوشحال بابا پښتو ادب ته کړے ده.

دَ خوشحال بابا نه وړاندې دَ پښتو شعر دَ فولکلوری اصنافو نه بغېر محض تر غزله محدود وه چې تر اوسه زمونږ په سینه دَ

رباعۍ په نوم مشهور دے او که چرې دې غزل نما څيز کښې به دَ بيان انداز کښې خارجيت پيدا شو نو قصيده به ئې ورته وئيله او بس.
خوشحال بابا دَ خپل وخت دَ ترقى يافته فارسۍ ډېر اصناف په پښتو کښې راننوېستل او په دې طريقه پښتو دَ رباعۍ، مربع، مخمس، مسدس، ترکيب بند، ترجيع بند او قطعاتو سره اشنا شوه.

هم دغه وجه ده چې دَ پښتو شعرى مېدان ارت او وسيع شو او ژبه دَ غزل دَ تنګنائ نه دَ نورو اصنافو ژور سمندر ته راووتله او دَ ترقۍ امکانات ئې زيات شول او دَ خوشحال بابا نه وروسته نورو شاعرانو بيا دغه اصنافو کښې ډېرې قيمتى تجربې وکړې. دَ شعر پيکر او ماهيت کښې دَ دې قيمتى بخښنو نه علاوه خوشحال بابا دَ شعر په لړمون کښې هم دَ رواياتو لار پرېښودله او شعر ئې هغو موضوعاتو سره اشنا کړو چې تر دغه وخته پرې چا فکر نه وه کړے. شعر دَ سياست دَ مقصد دپاره شعورى طور سره پکارول او دې لړ کښې ده ته دَ تورې درجه ورکول شايد چې دَ انسان په معلوم تاريخ کښې دَ خوشحال بابا نه مخکښې چا نه وو کړى. ما چې کله دَ خوشحال بابا دا شعر ولُست چې :

زه ئې چا لره وهم قدر ئې چا زده

په اور وسېزه دا تورې قلمونه

نو ماته دَ دې شعر نه دا نظريه روښانه شوه چې خوشحال بابا توره او قلم دَ يو مقصد دپاره راوستى دى او هر کله چې دَ هغه دَ تورې په حقله دَ يو خاص مقصد په ضمن کښې هېڅوک هم شک نه کوى ځکه نو په ډاډه زړه دا ويلى شو چې خوشحال بابا په علمى ادبى تاريخ

کښې هغه وړومبنے فنکار دے چې ادب او فن ئې دَ يو مقصد دپاره نه صرف استعمال کړی دی بلکې په وړومبنی ځل ئې دَ مقصدی ادب مفکوره هم منځ ته راوستې ده. په دې ضمن کښې دَ خوشحال بابا دَ اوليت او نبوغ يو اضافی دليل دا هم دے چې دَ دنيا په ادب کښې دَ مقصد او نه مقصد بحث هغو دَ اتلسمې صدئ نه پس رانښوتے دے.

دَ "زه ئې چا لره وهم قدر ئې چا زده" مصرعه دا هم راجوتوی چې خوشحال بابا شعوری طور سره ادب نه دَ اولس او قوم دَ مفادو کار اخستل غواړی او محض دَ يوې خيالی مفکورې يا فلسفې دپاره ئې استعمالول نه غواړی. ځکه چې دَ "چا" ضمير شخصی دَ انسانانو دپاره استعمال شوے دے دا يو ځل بيا دا خبره ثابتوی چې خوشحال بابا خپل قلم هم دغسې دَ هغو انسانانو دَ فائدې دپاره وقف کړے وه دَ چا دپاره چې ده ټول عمر تورې وهلې ځکه نو زما په خيال په درست عالم کښې پښتو هغه اولنئ ژبه ده چې دَ خوشحال بابا له برکته په انسانی تاريخ کښې په اول ځل دَ مقصدی ادب دَ آلې په طور استعمال شوې ده. دَ دې نظرياتی بخښنې سره سره خوشحال بابا پښتو شعر ته يو قومی کردار هم ورکړو.

دَ خوشحال بابا نه مخکښې او دَ هغه نه وروسته هم بلکې تر اوسه پورې زمونږ دَ اکثرو شاعرانو موضوعات داسې دی چې هغه دَ ترجمې په وخت قومی تشخص وبائلی دَ مثال په طور که دَ ميرزا خان انصاری غزل مونږ په فارسئ کښې ترجمه کړو نو هيڅوک دا نه شی وئيلے چې دا شعر کوم پښتون شاعر وئيلے دے ليکن خوشحال بابا خپل شعر حتیٰ چې دَ غزل شعر ته هم يو داسې شخصيت ورکړو چې دَ

هغه پېژندګلو اسانه شوه او هر چا ته دَ ورايه هم دا معلومېږي چې دا شعر محض او محض يو پښتون وئيلے شي. دَ مثال په طور به دَ خوشحال بابا دا شعر واخلو:

په بل ځائې مې پېرزو نه ئې د يار غمه
ته زما دَ زړه دَ مات کودي رېحان ئې

دَ دې شعر دَ اورېدو او لُستو سره سم هر يوه اورېدونکي او لُستونکي ته دَ پښتونخوا دَ کليو دا روايت ذهن ته راشي چې دَ هغې مطابق دَ خاورو دَ لوښيو دَ ماتېدو نه پس دا په ظاهره بې کاره کودي دَ ګلونو دَ کرلو دپاره پکارېږي. دا صرف دَ پښتنو دود دے ځکه نو دَ دې دود دَ ذکر سره سم دا ثابته شي چې دَ شعر ويونکے پښتون دے.

خوشحال بابا خپل شعر کښې يواځې دَ پښتون قومي تشخص نه ظاهروي بلکې دَ خپل ذاتي شخصيت نقشونه هم خپل شعر کښې ښرګندوي دا دَ هغه دَ رومانټېسېزم يعني رومانيت يو لازمي خصوصيت دے چې يورپ ته په نولسمه صدۍ کښې معرفي شوے وه. دَ خوشحال بابا دَ غزل دې شعر ته توجه وکړئ:

مرګ لره ئې واړه دَ ډيلي لښکرې راغلې
ته لا دَ خوشحال په مرګ خان روغ نه ګڼې ننګ کړې

دا شعر سم دَ لاسه قاري او اورېدونکے په دې مطمئن کوي چې دَ دې ليکونکے دَ خوشحال بابا نه بغېر بل هېڅوک نه شي کېدے ځکه چې دا شعر دَ خوشحال بابا دَ ذاتي تجربې او وارداتو اظهار کوي. هم دغسې دَ خوشحال بابا دَ يو دعائيه نظم دا شعر چې:

ترِ ايمان چې مې چاپېر دَ يقين کوټ دے

سلامت ئې وساته برج و باره

هر قاري قائل او قانع کړی چې داسې شعر صرف او صرف خوشحال بابا وئيلے شی. هم په دې ضمن کښې خوشحال بابا دَ پښتو شاعرۍ سره يو بل احسان هم کړے دے. دَ خوشحال بابا دَ شاعرۍ دَ لُستلو نه پس مونږ دې نتيجې ته رسو چې خوشحال بابا شايد په مشرق کښې ورومبے او تر ډېرې مودې يواځينے شاعر دے چې دَ حقيقت دَ معلومولو پنځه واړه ذريعې يعنې حواس خمسه ئې په شاعرۍ کښې پکارولی دی. دَ دې نه مخکښې بلکې لا تر اوسه زمونږ شاعران داسې ښکاری چې صرف يو حس، او هغه دَ نظر حس لری. زمونږ دَ شاعرۍ په اکثرو برخو کښې محبوب صرف دَ رنګونو دَ قفس په حېث ظاهر کړے شوے دے او شاعر خپل نور حواس بالکل بېکاره پرېښی دی. زمونږ دَ شاعرۍ دَ اکثرې برخې دَ ژورې تجزيې نه پس دا معلومېږی چې زمونږ شاعران صرف سترګې لری او دَ نورو حواسو نه محروم دی. خوشحال بابا دا طلسم مات کړے دے او شاعرۍ ئې دَ نظر بازۍ دَ تنګې دائرې نه راوکښلې ده. دَ مختلفو حواسو دَ اطمينان په باره کښې دَ خوشحال بابا دا شعرونه وخيرئ:

د ذائقې حس:

چې په ښاخ ئې ډول ډول ميوې ځانګی

لا به کله دَ وصال دَ ونې بر خورم

د لامسي حس:

چې ئې ونیسم په غېږ کښې راته ګوری
لکه مست دَ مور په پیو کم کبلی

د شامي حس:

لخلخې دَ نوبهار په هر مشام ځی
ګلدستې ئې ټولوی پیر و برنا هم

د سامعي حس:

د مرغونو دَ نوا له موجه ښوری
نه له باده ښورېدنه دَ اشجار شی

او داسې نور او داسې نور.

او هم په دې لړ کښې پښتو ته دَ مناظر فطرت دَ موضوعاتو ورکړه هم دَ خوشحال بابا اولیت دے. ځکه چې مناظر فطرت تل دَ انسان پنځه حواسه راپاروِلی دی. دلته دَ پښتو دَ نورو شاعرانو او دَ خوشحال بابا تر منځه دَ بېلتون کرښه واضحه شی. دَ پښتو نور شاعران انسانی حسن ستائی چې هغه صرف دَ لیدلو څیز دے او صرف پرې دَ یو حس یعنې باصره یا زیات نه زیات دَ لامسې تسکین کیږی لیکن فطری حسن کښې دَ پنځو واړو حواسو دَ تسکین سامان دے او ځکه خوشحال بابا پښتو کښې په وړومبنی ځل دَ پنځو واړو حواسو دَ تسکین دپاره دَ فطرت مناظر دَ خپلې شاعرۍ موضوعات ګرزولی دی. دې ضمن کښې دَ آصف جاه دَ باغ په حقله دَ خوشحال بابا ټول نظم دَ مثال په طور دَ راوړو حق لری زه ئې دَ اختصار له کبله په تشه حواله اکتفا کوم.

د شعر نه پس دَ نثر په مېدان کښې هم خوشحال بابا په پښتو ډېر احسانونه لري. دَ خوشحال بابا نه اګاهو دَ تذکرة الاولیا دَ نثر شهرت اورو چې په خپلو ټولو تفصیلاتو او جزئیاتو کښې دَ خېرالبیان او دَ مخزن الاسلام دَ نثر په شان دے او دَ خېرالبیان او مخزن په حقله دَ خوشحال بابا رائې دا ده. دَ خېرالبیان په حقله وائی:

دَ روښان خېرالبیان ئې وه لیدلے

هغه هم مجهول بیان وه ناپسندلے

او دَ دروېزه مخزن داسې ستائی:

دروېزه چې بیان کړے خپل کتاب دے

نوم ئې مخزن الاسرار کړے جناب دے

هر بیان ئې ناموزون مجهول بې رنګه

خالي پاتو له دانشه له فرهنګه

دروېزه نه مجتهد دے نه امام دے

دے هم خام تاسې هم خام مخزن هم خام دے

ما دَ دې مقالې په شروع کښې عرض کړے وه چې دَ خېر البیان "لیک شان" یعنې اسلوب دَ پیر روښان خپل اسلوب نه دے بلکې لکه څنګه چې پیر روښان په خپله اعتراف کوی دا مسجع او مقفی لیک شان شعوری طور سره دَ سورت رحمٰن په تتبع کښې اختیار شوے دے ځکه نو دَ احتیاط تقاضا دا ده چې مونږ دې لیک شان ته دَ بایزید روښان لیک شان ونه وایو. دَ دروېزه له خوا په خپل مخزن کښې دَ دغه لیک شان پېروی هم دَ دې حتمی ثبوت نه دے چې دا لیک شان دَ هغو ورځو دَ پښتو مستند او مروج لیک شان وه.

ځکه چې اول خو لکه چې وويلی شو پيرروښان دَ خپل ليک شان دپاره دَ سورت رحمٰن دَ تقليد عذر راوړی او بله دا چې دَ ليکونکيو يو زوړ روايت دا وه چې دَ ځواب طلب کتاب يا رسالې ځواب به ئې تل هم دَ دغه کتاب په اسلوب کښې کولو. تر دې چې نوم به ئې هم ورسره دَ هغه ځواب طلب کتاب نوم سره نژدې نژدې کښېښودو. دَ برهان قاطع په ځواب کښې دَ ليکلی کتاب نوم قاطع برهان او بيا دَ جواب الجواب نوم قاطع القاطع ايښودل دَ هغه وخت دَ علماؤ په دې روايت ښه رڼا غورزوی.

هرکله چې دَ خيرالبيان او دَ خوشحال بابا دَ نثر تر مينځه دَ پښتو دَ څه نثری اثر پته نه لګی بلکې لا دَ سوات نامې دَ شعرونو نه داسې معلوميږی چې کم از کم سوات کښې دَ مخزن نثر منلے او قابل تقليد ګڼلے شو ځکه نو په محفوظه طريقه دا وئيلی شو چې دَ پښتو دَ نوی نثر بانی هم خوشحال بابا وه. دَ دې دعوې يو دليل دا هم دے چې که چرې په دغه دور کښې داسې څه نثری اثر وے چې دَ خوشحال بابا دَ نثر ورسره تعلق پيدا کيدے شوے نو خوشحال بابا به ئې په سوات نامه کښې ضرور دَ مخزن سره تقابلی ذکر کړے وے. حال دا دے چې خوشحال بابا دَ مخزن دَ مقبوليت يوه وجه پښتنو کښې جهالت او نتيجه دَ نورو کتابونو نايابی بيانوی. دَ خوشحال بابا دَ نثر دَ نمونو نه وړاندې دَ خيرالبيان او مخزن دَ نثر نمونې دَ ګرانو لُستونکيو دَ تقابلی مطالعې دپاره پيش کوم. دَ خيرالبيان دې عبارت ته خيال وکړئ:

"کړه څوک اس اسپې لرې کال تېر شی تمام
څښتن ئې اختیار لرې چې یو دینار دې ورکه دَ هر حېوان
یا دې بها کښې له دوه سوؤ درمو دې پنځه ورکی تمام"

اخوند درویزه وائی :

"امام عمر نسفی وئیلی مبرهن دی. چې صوفیان دَ حق دوستان دی. چې دَ زړو په پاک کردن دی.
دوی پریښې غیره مینه. اشنائی ده له خدایه
موافق دی له کتابه. اراسته دَ پاک رسول په ښه سنن دی."

دَ دې په مقابله کښې دَ خوشحال بابا دَ یو علمی کتاب دستارنامې دا عبارت وخیرئ :

"دَ دستار په حقیقت خبر شه چې دستار په سر کول دَ ښېوې او نمایې دپاره نه دی دستار دَ مرد شرم او عزت دے تمامی شرم دَ مرد پن دستار کښې دے."

دَ خوشحال بابا نثر نه صرف روان او شائسته دے بلکې دَ هغو ټولو تکلیفونو او تصنعاتو هم پاک دے چې څه خو دَ ما بعد الطبیعاتی اومافوق الفطری شوکت او دَ عامې ژبې نه دَ شعوری طور سره دَ لرې کېدو په وجه پیدا کیږی. دَ خوشحال بابا ذاتی ډائری چې اکثره حصه ئې افضل خان په خپل تاریخ مرصع کښې دَ بیاض په نوم عیناً نقل کوی دَ دې نه هم زیات شګفته نثر لری یوه نمونه ئې وګورئ:

"دَ اشرف خان ګوزار دَ نیزې لکه وه هسې په عظمت وکړ. کوز شو ولې پرې نه ووت عابد خان په نیزه وواهه خو چې پرې ووت هسې ئې توره وکښه ګوزار وته جوړ شو عابد خان تېر شو په هغه

محموتی پسې هغه ئې هم پرېوست عابد خان هم له اسه پرېووت هغه پرې راغے پاځېدو. ورسره غاړه غړی شو. په اُبو کښې ئې دَ هغه سر وماندهٔ. هم پاس په ډنډ کښې پرې ووت د ما نظر پرې وشو حېران شوم."

دا هم هغه شان نثر معلومیږی لکه چې منشی احمد جان، راحت زاخېلی صاحب او عیناً چې ماسټر عبدالکریم په دې دور کښې استعمال کړے دے. وړې وړې ځینې فقرې دَ عامې وېنا ژبه بې تکلفی او بې ساختګی دَ خوشحال بابا دَ دې نثر خصوصیات دی. او دا هم هغه خوئی دے چې زمونږ نننی نثر ځان کښې راځائې کړے دے او ځکه دَ تردید نه بغیر مونږ دا دعویٰ کولے شو چې دَ نثر دا سبک هم خوشحال بابا پښتو ته ورکړے دے. دَ نثر په ضمن کښې دا خبره هم دَ یادولو ده چې دَ خوشحال بابا نه وړاندې نثر صرف دَ مذهبی مباحثو دپاره استعمالیده. ځکه نو دَ نثر دائره تنګه وه. خوشحال بابا یو خوا دَ دستار نامې په لیکلو دا ثابته کړه چې پښتو نثر کښې دَ فکری او فلسفیانه مضامینو دَ ځائېدو توان هم شته او بله خوا ئې په خپل بیاض کښې دَ انشائیه او بیانیه نثر دَ لیکلو عملی مثالونه هم پېش کړل دا ئې ثابته کړه چې پښتو نثر کښې دَ هر قسم مضمون ځائېدے شی او دا دَ نثر مېدان کښې دَ خوشحال بابا دَ ټولو نه لوے خدمت دے. پښتو ژبې او ادب ته دَ خوشحال دَ بخښنو فهرست ډېر اوږد دے ځکه چې خوشحال بابا یواځې ادب پېدا نه کړو بلکې ادیبان ئې هم پېدا کړل او داسې ئې پښتو ادب ته دَ صدقه جاریه بخښنه وکړه.

دَ خوشحال بابا په کورنۍ کښې دَ هغه اووه شپېتو زامنو

کښې اشرف خان هجري، سکندر خان خټک، عبدالقادر خان خټک، صدر خان خټک، او ګوهر خان نامتو شاعران او نثر نګاران یادیږي بلکې دَ خوشحال بابا دَ یو شعر:

عطارد دې نور قلم دَ لاسه کیږدی

چې په دا خوبی بهرام انشا املا کړه

او دَ سکندر خان دَ دې شعر نه:

چې دَ ده ئې تربیت کړو

سکه بابا نه وه هوښیار

دا معلومیږی چې بهرام خان هم دَ لیک دَ میدان سپاهی وه هم دغسې دَ هغه په دوه دېرشو لوښو کښې دَ یوې بی بی حلیمې ذکر دَ شعر ویونکې په حیثیت په "پټه خزانه" کښې هم شوے دے.

افضل خان خټک چې دَ خوشحال بابا نمسے هم وه دَ پښتو ادبی دنیا کښې ښه معروف ادبی شخصیت دے او اګر چې دَ تازه ترین تحقیق مطابق دَ کاظم خان شیدا او دَ خوشحال بابا تر منځه خاندانی نسبت څه مشکوک شوے دے بیا هم تر اوسه کاظم خان شیدا دَ خوشحال بابا کړوسے ګڼلے شی. او داسې دا خبره ثابتیږی چې دَ خوشحال بابا نه څلور پُشته پس هم پښتو ته دَ خوشحال بابا بخښنې جاری وے او ننني دور کښې اجمل خټک دا خبره یو ځل بیا روښانه کړه چې دَ خوشحال بابا په خپل نسب کښې پښتو ته دَ درنو بخښنو دا سلسله روانه ده او تر هغې به روانه وی تر څو چې دَ خوشحال بابا دا پیش ګوئی نه وی پوره شوې.

چې په سرائې کښې به پېدا شي
پس له قرنه پوره سېر

لېکن چې دا هر څه وويلي شي نو دا خبره له ټولو نه زياته اهمه ده چې دَ خوشحال بابا پښتو ته دَ ټولو نه لويه عطيه او بخښنه دَ ده هغه تلوسه ده چې دے ئې دَ پښتو دپاره لري او چې دے ئې په دې وئيلو مجبور کړے دے چې :

چا ئې پلو له جمال وا نه خست
پښتو لا هسې بکره پرته ده
چې په خپله افغاني ژبه نادان دی
په ترکي خبرې څه وايې افغان ته

او دا هم چې :

په يوه ژبه وئيل سره پښتو کړو
ولې هېڅ نه شُو له يو بل خبردار

او دَ خوشحال بابا دَ هم دې تلوسې نتيجه ده چې دَ پښتون هر نسل کښې لږ وی که ډېر داسې کسان ضرور پېدا کېږي چې هغوی دَ خوشحال بابا دَ دې تلوسې نه الهام اخلي او دغسې پښتو مخ په وړاندې روانه ده او انشاء الله روانه به وی.

تل دې وی پښتو. تل دې وی پښتون.

("توريالے پښتون" پښتو ټولنه کابل افغانستان ثور ۱۳۵۰ هش)

# رحمان بابا ـ دَ هغهٔ رجائیت

دَ مشرقي شاعرانو دَ کلاسیکي برخې یو لوئې خصوصیت دا دے چې دوی دَ مغربي شاعرانو برعکس ژوند ته یوه واضحه او ښکاره رویه نهٔ لري. نو ځکه دَ دغه شاعرانو دَ ژوند په حقله نظریه یوه مستقله او اکثرو حالاتو کښې ترقي پسنده نهٔ وي. دَ دې غټه وجه دا ده چې دوی هیڅرې خپله شاعري ژوند ته مخامخ کړې نهٔ ده. دا بیله خبره ده چې حالاتو دوی مجبور کړي دي او په زور ئې دَ دوی ذهن نه داسې تخلیقات برخېره کړي دي چې هغو کښې ژوند او دَ ژوند مسئلو ته واضحې اشارې دي. زما دَ عاجز خیال مطابق خوشحال بابا په پښتو کښې خو خواه مخواه او په ټول مشرقي ادب کښې غالباً وړومبے شاعر دے چې شاعري او ادب ئې ژوند ته لکه دَ خپل ځان په ښهٔ شان ښېلمه کړې دي. دَ دهٔ نه مخکښې تر څو چې مونږ ته دَ خپل ادبي تاریخ علم دے او دَ دهٔ نه وروستو تر ډېرې مودې تر هغه وخته چې ادب کښې دَ مغربي ادب دَ اثر لاندې ساهو ادبي تحریک (د ساهو نه زما مطلب ژوند دے) نهٔ وهٔ شروع شوے ټولو ادیبانو او شاعرانو چې مونږ ته خپل څهٔ ادبي آثار پرېښي دي هغه ټول دَ ژوند په حقله نژدې نژدې خاموش دي.

دغه ټولو شاعرانو خپله شاعري یا خو وخت تېرے ګڼلو او یا ئې پرې دَ خپلو نفسیاتي کشالو Psychological Complications

علاج کولو. دا ټوله ډله له ژوند نه مړه وه. یا ئې ځان داسې ظاهرولو او لا دې ته دوی خپله ژبه کښې حقیقت هم وئیلو او وائی. دا دنیا، ژوند، ښکلا، ښائست او دوی سره متعلقه خبرې او مسئلې ورته مجاز او بې فائدې ښکارېدې او ښکاری. نو داسې حالاتو کښې دَ دوی دَ ژوند او شاعرئ رجائی اړخ باندې څه لیکلی شو؟

څه ته چې مونږ رجائیت وایو هغه ادب کښې دَ هغه رجحان ملا مضبوطول دی کوم چې انسان ته دَ ژوند په لویه لاره دَ خپلې ستومانئ دَ هېرولو او منزل ته دَ نزدیکت دپاره دَ قربانئ احساس او نغوته ورکوی. او دغسې انسانی ذهن کښې دَ مخکښې تلو تلوسه پیدا کوی. ژوند ورته ښائسته کوی او دَ ژوند دَ ښائست او ښکلا په خاطر ورته دَ مصیبتونو او کشالو سره دَ مقابلې کولو سبق ورکوی. او دا ورته جوتوی چې دَ دې محنت او مشقت یقینی نتیجه خوشحالی او کامیابی ده. دا رجحان دَ ژوند په حقله دَ دې نظریې مخالفت کوی چې ګڼی ژوند دَ یوې حادثې نوم دے او دَ انسان خوله او وینه دَ دې حادثې نه پیدا شوو نتیجو بدلولو کښې هیڅ حصه او برخه نه لری.

دَ رحمان بابا دَ شاعرئ دَ مطالعې نه پس سړے په دې پوه شی چې رحمان بابا بنیادی طور سره دَ ژوند په حقله دغه وروستئ نظریه لری. دې ژوند یو داسې شے ګڼی چې هغه کښې انسان او دَ انسان قوتونو ته هیڅ اختیار نشته نو ځکه دے عام طور دَ ژوند دَ ښکلا دپاره دَ جدوجهد دَ کامیابئ یقین نه لری او دَ ژوند نقل نه کوی.

رحمان بابا زمونږ دَ سیاسی تاریخ په یو داسې دور کښې پیدا

شوے وہ چې هغه زمونږ دَ سياسي، معاشرتي او ذهني انحطاط دور وہ. دَ ايمل خان، خوشحال خان او دريا خان ګرم تحريک سوړ شوے وہ او نتيجه ئې دَ پښتنو دَ منشا برخلاف راختلې وه. دې حالاتو کښې کہ رحمان بابا شعوري طور باندې نه نو غير شعوري طور باندې خواه مخواه پہ دې اثر اخستو مجبور کړے وہ. چې دَ قسمت بدلول دَ سړي پہ اختيار کښې نہ دي. نو داسې انحطاطي دور کښې کہ رحمان بابا دَ مايوسۍ وېناګانې کړي وي نو ګرم نہ دے. ځکه چې ادب دَ ژوند دَ تنقيد، تطهير او دَ تعمير دَ وسلې پکارولو خو ډېره اوسنۍ خبره ده او يقيناً رحمان بابا هغه دور کښې ادب دَ دې مقصد دپاره نہ شو استعمالولے.

دَ رحمان بابا دَ ژوند پہ حقله رائې او دَ مايوسۍ خوا ته رجحان دَ يو بل څيز نه هم متاثره ښکاري او هغه دَ ايران دَ انحطاط پذير ادب تتبع ده. ايران نه دَ مغلو پہ ذريعه او لہ دوي نه پس چې کوم ادب هند او دَ پښتونخوا دې حصې ته درآمد کړے شوے وہ هغه دَ هغه شکست خوړلې ذهنيت آئينه وه کوم چې ايراني معاشرې پہ هغه ورځو شپو کښې پيدا کړي وو. دَ عمل او جدوجهد پہ ځائې چې عربو ايران ته ورکړي وو دَ قلارې، ساکن او يخ ژوند دَ ايرانيانو ذهنونه ځان ته راښکلي وو. او دوي ئې خپلو تخليقاتو کښې پہ اظهار مجبور وو. نو دَ دغه ادب پہ تتبع کښې چې کوم ادب دلته پيدا کېدو هغه به خواه مخواه دَ ياس او نا اميدۍ مرقع وہ او ځکه چې فارسي دَ هغه دوړ دَ اشرافيې ژبه وه. نو دَ رحمان بابا متاثره کېدل ترې لازمي وو او دَ فارسۍ دَ دغه دور نه دَ متاثر کېدو نتيجه وه چې رحمان بابا داسې

وېناڅاني کولې چې پکښې دَ حرکت په ځائې دَ جمود طرف ته غالب رجحان وه.

خو سره دَ دې هر څه رحمان بابا پښتون وه او پښتون په اله اسانه او په خوښه هیچرې دَ ناستې او ارام طلبۍ ژوند ته هرکلے نه دے وئیلے. دا دَ پښتون نسلي خصوصیت دے چې هغه دَ بزم نه زیات په رزم مئین دے او دَ سکون نه ورته حرکت ډېر غوره ښکاری. نو ځکه رحمان بابا کله نا کله داسې شعرونه هم وئیلي دی چې دَ رجائیت شوخ رنګ لری. دَ رحمان بابا دا شعر :

ښه ده ښه ده دا دنیا

چې توښه ده دَ عقبا

پخپله دا ثابتوی چې رحمان بابا دَ ژوند په حقله کله نا کله داسې سوچ هم کوی چې ژوند که په ښه طریقه وکړے شی نو دَ دائمی خوشحالۍ سبب ګرځېدے شی او داسې نابوده شے نه دے لکه چې دوی دَ خپلې شاعرۍ په اکثره حصه کښې پېش کړے دے.

دَ ښه ژوند تېرولو په لاره کښې دَ تکلیفاتو او مصائبو دَ مقابلې اوړدې لاره کښې دَ زړه نه بائللو تلقین داسې کوی:

که ئې سر لکه منصور غُندې په دار شی

دغه دار دے و رحمٰن وته معراج

په هر زړه چې دَ خپل یار دَ غم غبار دے

دغه ابر دَ رحمت دے غبار نه دے

ستا وصال دَ سر پرېکړو دے دلبره

ژوندی نه مومی جنت بې مردګانو

دې شعرونو کښې رحمان بابا دَ خپلې عمومي لارې نه بالکل يو خوا ته شوے دے هغه دَ مقصد په لاره کښې مشقت او تکليف نه غاړه نه غړوی او هغه تکليف چې دَ مقصد په خاطر وزغملے شی راحت بولی ځکه چې دَ محنت نتيجه تل خوشحالی وی او دلته دَ هغه پښتون ذهنيت صفا ځلېږی. يو بل ځائې کښې وائی:

پۀ تلخئ دَ ميو مست خلق مې خوښ دی
هغه خار چې بوئی دَ ګل لری خار نۀ دے

دا دَ رحمان بابا دَ کلام اوفکر څومره لوئے تضاد دے چې يو خوا کۀ هغه:

کۀ تمامه دنيا واړه سره يو شی
نور به نۀ که خپل قسمت پۀ دا دنيا

او

چې ئې درست صورت غلبېل شي پۀ ازغيو
وخوړ مـۀ شـه دَ هـغې ونې ثمـر

وائی او داسې دَ ټول جدوجهد او عمل پۀ نتيجو شک او محنت نۀ يواځې ظاهروی نو بل خوا عمل يواځې دَ انسان دَ قسمت ذمه وار ګڼی او دَ مقصد پۀ لاره کښې مشقت او محنت سره څومره ټرون او مينه څرګندوی:

فال به څۀ ګورې رحمانه
خپل افعال دَ سړی فال شی
کۀ پۀ ډېر مشقت لاس لره خدائې راوست
زۀ به وايم چې اسان مې دے موندلے

او دَ دغې رويې نه لړ کړلېچ دَ رحمان بابا دَ پښتونولۍ وجه ده.

دَ خپل ماحول او دَ هغه اجزاؤ طرف ته دَ صحيح او مناسب عمل نۀ اختيارولو په سبب ډېر سودمند څيزونه هم بې سوده او ناکاره شي او په صحيح عمل، هنر په ظاهره نقصاني څيزونه هم سودمند او کارآمد شي. دا يو حقيقت دے چې رحمان بابا ئې داسې څرګندوي:

بې هنرو لره قند زهر قاتل دے

قند ئې وګڼه کۀ زهر په هنر خورې

او دې شعر کښې دَ بلند نظرۍ او علو همت څومره اوچت سبق دے:

دَ طلب لۀ کوتاهۍ ويره وکړه

کۀ هر څو دې لار کوتاهه ده طالبه

خو دَ يو شاعر دَ نظريې په حقله دَ هغۀ دَ يو څو شعرونو نه استنباط کول دَ ښۀ تنقيد ليکونکي ښېوه نۀ ده اګر چې زۀ دا هم منم چې دَ وړاندې عرض کړې شوې شعرونو نه علاوه به نور هم داسې ډېر اشعار وي چې دَ رجائيت په حقله دَ مثال په طور پيش کېدے شي خو خبره بيا هلته راځي چې رحمان بابا داسې شعرونه شعوري طور سره نۀ وو ليکلي او دغه ټول شعرونه صرف او محض دَ هغۀ دَ پښتون ذهنيت او دَ پښتون دَ ملي خصوصيت نتيجه ده او بس.

# اختلاق نامه

دَ ښاغلی همېش خلیل دَ "مقدمې، حاشیې او لټون" سره یو کتاب "اخلاق نامه" دَ پاکستان سټډی سنټر پېښور یونیورسټی له خوا شائع شوے دے. دَ دې کتاب په حقله دا دعویٰ شوې ده چې ګُندې دا دَ خوشحال بابا تحریر دے. ښاغلے همېش خلیل په خپله مقدمه کښې دَ دې دعوې په ثبوت کښې څه دلیل نه پېش کوی. دَ دې برعکس په دې وېنا خپله دعویٰ کمزورې کوی "(دې کتاب) دَ خان بابا دَ معلومو آثارو په فهرست کښې هم نوم نه درلود او نه ئې تر اوسه انکشاف شوے وه." څکه چې په داسې صورت کښې خو دا لا زیاته ضروری وه چې هغه دلائل بیان شوے وو دَ کومو په بنا چې ښاغلے همېش خلیل دا کتاب خوشحال خان خټک ته منسوبوی.

له دې نه اګاهو چې دا ووئیلے او ثابته کړے شی چې دا کتاب دَ خوشحال بابا نه دے دا ضروری ګڼم چې هغه ټول داخلی مواد وځیرم دَ کومو په بنا چې دا اشتباه کېدے شی چې شاید "اخلاق نامه" دَ خوشحال بابا تصنیف دے او چې ښاغلی همېش ئې دَ ښکاره کولو تکلیف نه دے کړے.

زما په خیال دَ دې کتاب دَ تصنیف په حقله وړومبې غلط فهمی له دې حقیقت نه پېدا شوې ده چې دا کتاب دَ خوشحال بابا دَ یو بل کتاب "دستارنامه" په حاشیو لیکلے شوے دے. دَ قلمی کتابونو په حقله معلومات لرونکیو دپاره دا خبره هیڅ وزن نه لری څکه چې

ډېر داسې کتابونه دَ اکېډيمۍ او دَ ارکائيوز په لائبرېرو کښې شته چې په متن کښې ئې يو مصنف دے او په حاشيه کښې بل. ډېر چاپ شوی کتابونه هم داسې شته چې په متن کښې ئې دَ يو ليکونکی تصنيف وی او په حاشيه ئې دَ بل کوم مصنف تحرير. ځکه نو محض په دې قياس چې "اخلاق نامه" دَ خوشحال بابا دَ کتاب "دستارنامه" په حاشيه ليکلے شوے دے دا حتمي دعویٰ نه شی کېدے چې په متن او حاشيه کښې ليکلی شوی کتابونه دَ يو ليکونکی دی او بيا خاص طور سره په داسې حال کښې چې "دستارنامه" کښې دَ "فتح علی خان" او "اخلاق نامه" کښې دَ فتح علی خان مرحوم" ذکر دے دا قياس هيڅ وزن نه لری.

دغه غلط فهمی دَ کتاب په ص ۷۳ له هغه نظمه پېدا کېږی چې عنوان ئ "حسب حال" دے. دې نظم کښې ليکونکے پښتون جاهل او خټک "لا په خوئ باطل" بلی. خپل پلار ته "بې سبقه خواننده" وائی او داسې يو التباس پېدا کوی چې گُندې دا خيالات دَ خوشحال بابا نۍ. خو لکه چې څنګه به وروستو واضحه کړے شی دا نظم صرف دا ثابتوی چې دَ کتاب ليکونکے يو خټک دے او پلار ئې دَ خوشحال بابا دَ والد محترم غُندې علم دوست سړے وه.

دوېمه غلط فهمی هم دَ دې نظم دَ ص ۷۸ له هغو شعرونو راولاړيږی چې دَ کتاب ليکونکی پکښې دَ مرزا نه بغېر نور ټول پښتانه شاعران دغسې غندلی دی لکه چې خوشحال بابا ئې غندی. دې ځائې کښې متأسفانه بناغلی همېش دَ خوشحال بابا دا غېر متعلق شعرونه راوړی دی:

دَ مرزا دیوان مې ومانړه پهٔ ګوړی
مسخره مې ارزانی خوېشکے زمند کړ
کهٔ دولت وهٔ کهٔ واصل وهٔ کهٔ دا نور وو
پهٔ خبرو مې دَ هر یوهٔ ریشخند کړ

حالانکې دَ کتاب دَ لیکونکی دَ شعر (چې اړولے چاپ شوے دے) سره دَ خوشحال بابا دا شعر سمون خوری:

لهٔ چا نه پهٔ پښتو کښې ما میزان لیدلے نهٔ دے
مـــیرزا پهٔ دا زبان کـــهٔ وئیل کړی دی تـــللی

دَ اخلاقنامې دا متعلقه شعر داسې پکار وهٔ:

پهٔ خبره یو مرزا دے (؟)
پهٔ هر حال کهٔ څهٔ اشنا دے

هم دغسې دې سره پېوست شعر هم داسې پکار وهٔ:

خبردار پهٔ دا هیڅ نهٔ دی
دَ جـــهالو پهٔ یانهٔ دی

(برسبیل تذکره بناغلی همېش دَ "یانهٔ" معنیٰ "جانب، طرف" لیکلې ده چې غلطه ده دا لفظ "یون" دے چې دَ "پهٔ" دَ حرف لهٔ کبله "یانهٔ" شوے ـے. او معنیٰ ئې تلل او مجازاً لاره ده).

دَ اخلاقنامې دَ نظم دَ دې حصې نه هم قطعی طور سره دا نهٔ ثابتیږی چې دا دَ خوشحال بابا کلام دے ځکه چې مرزا سره دا بې تکلفی اکثرو پښتنو شاعرانو کړې ده لکه چې رحمان بابا وائی:

دَ مرزا دَ ارزانی دعوې به پرې کا
قـــدر دان دَ شاعرانو رحمان راغے

دَ دېو غلط فهميو له کبله لکه چې مخکښې به ئې دَ کتاب دَ داخلی موادو نه ازاله وشی يو غېر محتاط لُستونکے خو غلطې نتيجې ته رسېدے شی لېکن دا مشکل هيڅ يو محتاط لُستونکی ته نۀ شی راپېښېدے. دَ دېو غلط فهميو نه بغېر په کتاب کښې داسې هيڅ شهادت نشته چې دا کتاب پرې دَ خوشحال بابا تصنيف ثابت کړے شی.

دَ دېو غلط فهميو په مقابله کښې دَ کتاب داخلی شهادت زيات اعتبار لری چې پرې نۀ صرف دَ دېو غلط فهميو ازاله کېږی بلکې ځنې نور داسې حقائق هم ترې څرګندېږی چې له هغو دا نتيجه ډېره په اسانه راوتلے شی چې "اخلاقنامه" دَ خوشحال بابا تصنيف نۀ دے.

وړومبی خبره چې هر يو محتاط لُستونکی له پرې غور کول پکار دی دا ده چې آيا دَ خوشحال بابا هغه ژوند چې مونږ ترې دَ خوشحال بابا دَ کلام او دَ تاريخ مرصع دَ مطالعې په نتيجه کښې خبر يُو هم هغسې دے لکه چې دَ "اخلاقنامه" مصنف ئې دَ خپل ځان په باره کښې وائی. دَ مثال په طور دَ "اخلاقنامه" مصنف دَ خپل ژوند دَ اولنی عهد په باره کښې چې څۀ ليکلی دی له هغه معلومېږی چې دَ کتاب دَ مصنف دَ پلار دا خواهش وۀ چې مصنف سبق ووائی علم حاصل کړی او دَ دې غرض دپاره ئې دۀ سره ډېر "شدت" کولو "تازيانې" ئې په دۀ سرې کړې او اخر دَ يو سړی په مشوره ئې هغۀ ته پرېښود. (دلته دَ کتاب بيان څۀ ناقص غُندې دے) چې په خپل همت او دعا ئې چاره وکړی. دا وخت دَ مصنف عمر لس کاله وۀ چې دے دَ

ګومبت په یوه جینۍ مئین شو او:

د استاد مهر دعا وَه

که دَ عشق دَ درد عطا وه

که دَ پلار هغه جفا وه

چې ئې تل له ما غوغا وه

(بس څو) ورځې سواد خوان شوم

(پوه په راز) دَ هر دیوان شوم

یا مې شعر یا مې ښکار وه

چې مې زړه پرې ګرفتار وه

تاریخ مرصع دَ خوشحال بابا دَ ابتدائی ژوند دوه واقعې لیکلی دی لیکن له هغو دا نه څرګندیږی چې دَ خوشحال بابا والد محترم هغوی سره څه شدت کولو نه چرې پخپله خوشحال بابا دَ علم دَ تحصیل په لړ کښې دَ خپل پلار دَ خفګان ذکر کړے دے. دَ دې په مقابله کښې خوشحال بابا چې هر کله دَ خپل پلار ذکر کوی نو په ډېر احترام ئې نوم اخلی او دَ پلار دَ حکم په منلو فخر کوی لکه چې وائی:

چې دَ پلار په نصیحت نه کا ژغری

دَ هغه زویه دانه شه په مری

لکه مونږ دَ بابا زویه وو په نغته

اوس په دا دور له چا طمعه لرئ (ص. ۳۵٤)

دَ لسو کالو په عمر کښې دَ ګومبت په جینۍ دَ مئینېدو او دَ هغې په نتیجه کښې دَ "سواد خوان" کېدو تردید دَ خوشحال بابا له دې

شعره کیږی.

په شل کاله کښې دېګ زما د شعر په اور بار شه

په دا دور مې پوخ کړو چې شپېته کاله مې تللی

دا قصیده خوشحال بابا په ۱۰۸۱ﻫ کښې لیکلې ده. په دې حساب د هغه د شعر ابتدا ۱۰۴۲ﻫ یا ۱۰۴۳ﻫ کښې کیږی. چې د هغه عمر شل کاله وه نه چې لس کاله لکه چې د کتاب مصنف وائی.

د اخلاقنامې مصنف د سواد خوان کېدو نه پس شعر او ښکار سره د خپل شغف اظهار کوی. د دې په مقابله کښې د خوشحال بابا بیان دا دے:

یو ساعت به مې په درس شل مې په ښکار وو

کله ښکار پرېښوم د کسب د کمال

یعنې د عمر له ابتدا نه هغه په درس او ښکار مشغول وه دا وه چې ښکار به ئې شل ساعته کولو او درس به ئې یو ساعت. بیا وائی:

د جهان تحصیل به کل واړه زما وه

که اخته نه وے د ښکار په اشتغال

(کلیات ص. ۵٤۰)

له دې شعره دا ښه واضحه کیږی چې خوشحال بابا د تحصیل علم په سلسله کښې صرف د ښکار شوق تکمیل ته فارغ نه کړو دا نه چې لکه د اخلاقنامې د مصنف د هغه علم سره شوق په دې وجه نه وه چې:

ذات په ذات چې څوک عامی وی

تل پکښې پرته خامی وی

یا

چې اولاد دَ خان ډېر وي

په هغه کښې هور جاګير وي

دَ خپل تحصيل علم په حقله دَ خوشحال بابا دا شعر دَ توجه وړ دے:

طبيعت مې عطائی نه دَ تحصيل دے

که خبر يم دَ املا په استعمال

دَ وروستۍ مصرعې نه لګه چې څرګنديږی خوشحال بابا دَ املا په استعمال ښه خبر وه او دَ املا استعمال دَ عمر په ابتدا کښې زده کيږی. دا حقيقت چې دَ خوشحال بابا هغه شعر سره وخيړلے شي کوم کښې چې هغه دَ خپل شعر ابتدا دَ خپل عمر دَ شلم کال نه کوی نو دا ترې ثابتيږی چې هغه دَ زده کړې په عمر کښې دَ خپل پلار دپاره هيڅ مسئله نه وه پيدا کړے دغسې دَ خوشحال بابا او دَ اخلاقنامې دَ مصنف تر منځه فرق بالکل جوت شي.

دَ اخلاقنامې دَ مصنف دَ ژوند نور حال خو له کتابه نه څرګنديږی خو دومره ترې ضرور معلوميږی چې دَ هغه په خيال "ښکار افت دَ هر هنر دے" دَ دې په مقابله کښې هم په دغه نظم کښې چې درې شعرونه ترې رانقل شو خوشحال بابا وائی:

غاښ وتلی ږيره سپينه لا تر اوسه

باز په لاس ګرځم په غرونو په جبال

او له دې نه علاوه په "دستار نامه" کښې ښکار دَ هنر په حېثيت ستائی او دَ دستار دَ خاوند دپاره ئې ضروری ګڼی.

دَ خوشحال بابا او دَ اخلاقنامې دَ مصنف تر منځه دَ عقيدې اختلاف هم ډېر اهميت لری. دَ خپلې عقيدې په حقله خوشحال بابا

وائی:

پښت په پښت راغلے مسلمان محمدی یم
چـار دَ چـار یارانو سره واړه منم سمه
درست په دا پوهیږم چې څلور مذهبه حق دی
زه دَ حـنفي مـذهب دعویٰ لرم محکمه
(کلیات ص. ٥٦٠)

او

په سرو زرو کښې کمے دَ قدر نشته
صحابی دَ پیغمبر واړه سره زر دی
زه خوشحال خټک هغه سنی مذهب یم
چـې یاران رابـاندې واړه برابـر دی
(کلیات ص. ۳٥٥)

هم اصحاب ئې سکه ستوری دَ هدیٰ دی
دَ هدیٰ دَ لار ښـیون کاندی نجوم دی
که خلاف ئې دَ اصحاب په منځ کښې وشی
دَ مفهومو کار هغه زده چې مفهوم دی
(کلیات ص. ٦١٤)

دَ دې په مقابله کښې دَ اخلاقنامې دَ مصنف عقیده هم ولولئ. دَ حضرت عثمان رضی الله عنه په منقبت کښې وائی:

دَ ده زړه له مکره خاص وه
که مکار وه عمرو عاص وه

عمرو عاص پہ مکاری

پہ ملک ګډ کړ خوکاری

پہ شامت دَ شامتیانو

عثمان ووژې خوېشانو

دَ حضرت عمرو بن عاص رضی الله عنه پہ حقله دا عقیده دَ خوشحال بابا بیان کړے عقیدې سره چې مقابله کړے شی نو صفا ښکاری چې دَ خوشحال بابا او دَ اخلاقنامې دَ مصنف پہ تسنن او شیعیت کښې بُعدالمشرقېن دے او دا دَ دې حقیقت واضحه ثبوت دے چې دَ اخلاق نامې مصنف خوشحال بابا نہ دے.

دَ اخلاقنامې دَ مصنف شاعری دَ هغہ دَ لوړې دعوې باوجود دَ ډېر ټیټ معیار شاعری ده. شاعرانه تصور، نازک خیالی او دَ الفاظو صحیح استعمال خو ډېره لویه خبره ده دَ اخلاقنامې دَ شاعر قافیې او وزن هم اکثر غلط دی دَ داسې غلطو امکان دَ خوشحال بابا څنې نہ شی کېدے. دَ قافیې دَ غلطیو یو څو مثالونه وګورئ:

لا دانه نہ وی زوولے

دھ پہ نام وی دَ چا کښلے

هم هغہ وی بیا خوړلے

چې پہ نام وی دَ چا کښلے

یوه جن وه پہ ګمبت کښې

شب چراغه وه پہ شب کښې

دې هم مخې ته ور ووت

دَ غلیم لښکر ئ وکوت

دَ وزن دَ غلطیو دپاره دا شعرونه ملاحظه کړئ:

بویه دا چې څوک بادشاه شي

دَ درست خلق نیک خواه شي

که خبر شي په هر دین کښې

کار دَ زنا دے په نفرین کښې

حال زما دَ زوم څه دے

په دولت موړ دے که نه دے

"اخلاقنامه" دَ اخلاق محسنی ترجمه ده او ښاغلے مؤلف پخپله دَ دې رائې تائید کوئ چې دَ فارسۍ دا کتاب په دې موضوع دَ اخلاق ناصری او اخلاق جلالی دَ علمی پایې نه ډېر کم دے. پخپله دَ خوشحال بابا رائې هم دا ده. خوشحال بابا چې په یو شعر کښې په کوم رنګ کښې دَ اخلاق ناصری ذکر کړے دے له هغه معلومیږی چې په دې موضوع هغه له ټولو اوچت کتاب "اخلاق ناصری" ګڼی لکه چې وائی:

که اخلاق ناصری په یاد ووائی

په اخلاق کښې به ښه نه شي بداخلاق

دَ دومره ښه او اعلیٰ کتاب په موجودګۍ کښې خوشحال بابا ولې دَ اخلاق محسنی ترجمه ضروری نه ګڼله او زوی یا زامنو ته ئې وصیت کولو چې که ده دا کتاب ترجمه نه شو کړے نو دے یا دوی به ئې وکړی. دا یو داسې سوال دے چې ځواب به ئې هغه څوک ورکوی چې اخلاق نامه دَ خوشحال بابا تصنیف ګڼی.

دَ اخلاقنامې دَ خوشحال بابا دَ نه کېدو په حقله یو لوئې

دلیل له هغه حکایته څرګندیږی چې دَ کتاب په ص ۱۲۷ دَ عفت له بابه سره راوړے شوے دے. دَ دې حکایت په حقله دَ اخلاقنامې مرتب بناغلے همېش لیکی :

"زما دَ وړاندې دَ اخلاق محسنی دَ چاپ نسخې دَ عفت په نهم باب کښې دا حکایت نشته دَ دې مطلب صفا څرګند دے چې دا حکایت دَ اخلاقنامې دَ لیکونکی طبعزاد دے. دا حکایت داسې شروع کیږی:

یو بادشاه دَ هندوستان وه

دَ تیمر دَ دودمان وه

نه چې بل شاه جهان وه

چې ثانی صاحب قران وه

دَ حکایت خلاصه دا ده چې دَ تیمور په خاندان کښې یو باچا وه چې شاه جهان نه وه بلکې یو بل بادشاه وه چې عیاش او ناپاک وه او په دې وجه چې موقع پیښه شوه نو خپلو امیرانو له تخته ګوزار کړو او زوی لره ئې په بند ورکړو. او په قید کښې مړ شو. دَ خوشحال بابا تر ژونده بې دَ شاه جهان نه دَ تیموری باچاهانو په سلسله کښې بل کوم بادشاه له تخته کوز کړے شوے نه دے. تیموری سلسله په ۱۵۲۶ء کښې شروع کیږی او خوشحال بابا په ۱۶۸۹ء کښې وفات کیږی. ۱۵۳۰ء کښې بابر پخپل مرګ مړ شو ۱۵۵۶ء کښې همایون په یوه حادثه کښې وفات شه. دغسې اکبر او جهانګیر هم پخپل مرګ په ترتیب په ۱۶۰۵ء او ۱۶۲۷ء کښې ومړل. دَ جهانګیر دَ وفات نه پس شاه جهان بادشاه شو چې په ۱۶۵۸ء کښې معزول کړے شو او پس له

څو کاله ۱٦٦٦ء کښې په بند کښې ومړ. دَ اخلاقنامې مصنف پخپل حکايت کښې دَ اشتباه دَ رفع کولو دپاره دا وائی چې دې دَ کوم باچا حکايت بيانوی هغه شاه جهان نه وه نو ځکه دا وئيلے شو چې دا واقعه دَ خوشحال بابا په ژوند کښې نه وه پېښه شوې. دَ اورنګ زيب دَ وفات نه پس دَ مغلو ډېر باچاهان له تخته لرې کړے شوی، ړانده کړے شوی او وژلی شوی دی. دَ بهادر شاه ۱۷۰۷ــ۱۷۱۲ء دَ مرګ نه پس جهاندار شاه باچا شو خو دَ خپل وراره فرخ سير له لاسه په ۱۷۱۳ء کښې له تخته لرې او وروستو مړ کړلے شو. فرخ سير په ۱۷۱۹ء کښې له تخته لرې کړے شو ړوند کړے شو او په بند کښې ووژلے شه. ۱۷۱۹ء کښې پرله پسې دوه دوه باچايان رفيع الدرجات او رفيع الدوله په تخت کښېناستل خو دواړه په خپل مرګ مړه شول. دَ رفيع الدوله نه پس روشن اختر دَ محمد شاه په نوم دَ ډيلی په تخت کښېناست او تر خپله مرګه (۱۷٤۸ء) باچا وه. دَ ده نه پس دَ ده ځوئې احمد شاه باچا شه دې په ۱۷۵٤ء کښې له باچاهۍ لرې او ړوند کړے شه او دَ ده په ځائې دَ جهاندار شاه زوے عالمګير دوېم په تخت کښېنولے شه په ۱۷۵۹ء کښې عالمګير دوېم قتل کړے شه او دَ ده په ځائې دَ ده زوئې شاه عالم دوېم په تخت کښېنولے شه. دَ شاه عالم جانشين اکبر شاه ثانی وه چې په ۱۸۰٦ء کښې باچا شه او په ۱۸۳۷ء کښې ومړ او دَ ده په ځائې بهادر شاه دوېم باچا شه چې تر ۱۸۵۸ء باچا وه او بيا پېرنګيانو معزول کړو. له دې ټولې تذکرې نه مطلب دا وه چې کله مونږ دَ حکايت روايت پسې ځو نو حکايت کښې ذکر شوے باچا عالمګير دوېم وه چې دَ هغه دَ قتل نه پس دَ

هغه زوئي باچا کړے شوے وه. یا که ورارهٔ دَ زوی قائم مقام وګڼو نو دا قتل شوے باچا جهاندار شاه وه چې دَ هغه متعلق خافی خان دا لیکی چې دَ ده دَ حکومت زمانه دَ ډمو او ډمانو دَ عروج زمانه وه. بهرکیف هرکله چې دَ خوشحال بابا تر ژونده دَ تېمور له دودمانه صرف پنځه باچاهان تېر شوی وو ځکه نو دا ذکر "دَ یو باچا دَ هندوستان وه" په الفاظو کښې ناممکن وه. بله دا چې که څوک دا ووائی چې دا خو یوه افسانه وه ځکه په تاریخی معیار ئې سنجول مناسب نه دی نو دَ دې په ځواب کښې دا کافی ده چې په داسې حال چې لیکونکے پخپله په داسې زمانه کښې تېر شوے دے چې دَ تېمور دَ دودمان دومره موده نه وه شوې چې افسانوی حېثیت اختیار کړی. نو ځکه دې ته مونږ افسانه نه شو وئیلے او په دې دلیل دَ اخلاقنامې دا حکایت دَ هغه زمانې سره تعلق لری چې دَ تاریخ په اصطلاح کښې ورته دَ وروستنو مغلو زمانه وائی. چې دَ خوشحال بابا دَ مرګ نه پس ته شروع کیږی او صرف له دې حکایته دا ثابتیږی چې دَ اخلاق نامې لیکونکے دَ وروستنو مغلو نه هم وروستو تېر شوے دے.

هر څو که دَ دې خبرې زما مقالې سره براه راست څه تعلق نشته چې اخلاقنامه چا لیکلې وه ولې دَ نورو تحقیق کونکیو دَ دلچسپی دپاره زه خپله رائې پېش کوم چې کېدے شی څوک ترې په مستقبل کښې څه فائده واخستلے شی. اخلاقنامه دَ خوشحال بابا دَ کتاب دستارنامې په حاشیه لیکلې شوې ده. دَ دستار نامې دا نسخه چې مکمله شوې وه نو هغه وخت "فتح علی خان" ژوندے وه ولې دَ اخلاقنامې دَ تکمیل په وخت هم دغه فتح علی خان ته مرحوم وئیلی

شوی دی. دَ اخلاقنامې اخری نوټ دا دے:

"جهت پاس خاطر عزیز و شریف محب العلم والعلماء اقبال نشان فتح علی خان مرحوم. اخلاقنامه."

دَ فتح علی خان دَ وفات نه پس دَ هغۀ لۀ خاطره اخلاقنامه مکمل کول غالباً چې هم دَ هغۀ دَ فرمائش نتیجه وه چې دَ اخلاقنامې دویم مصنف ئې دَ کتاب په شلم باب کښې داسې ذکر کوی:

چې بابا فرمائش ماته
کړے وۀ نمائش ماته
پس لۀ ما کۀ زما زویه
چې قوت لرے دا بویه
تر څلوېښتو بابو پورې
دا کتاب کړه وبله پورې

څکه نو چې ترکومه پورې بل واضح ثبوت نۀ وي پیدا شوے زمونږ دپاره بې لۀ دې بله لاره نشته چې اخلاقنامه دَ خوشحال بابا نه بلکې دَ فتح علی خان مرحوم دَ زوی تصنیف وګڼو. زۀ پۀ یقین نۀ شم وئیلے خو شاید چې دا فتح علی خان دَ ټیری دَ نوابانو دَ خاندان سره تعلق لری څکه چې ما دَ ټیری دَ کتاب خانې پۀ څنو کتابونو دَ فتح علی خان نوم لُستے دے.

(میاشتنی مجله "پښتو" پښتو اکېډیمی پېښور یونیورسټی دسمبر ۱۹۸۲ء)

# ورک ځوے څنګه پیدا شه

دَ ښاغلی حبیب الله رفیع په سریزه او سمون دَ لنډې دَ اخون احمد صاحب سره منسوبه یوه وړه غُندې رساله په برنی نوم چاپ شوې ده. دَ دې رسالې په سریزه کښې ښاغلی رفیع وئیلی دی چې "ډېره په زړه پورې ده چې مونږ کولاې شو دَ لنډې قصې لیکنې (شارټ سټوری) دَ فن له پلوه هم په دې قصه کښې دَ ننني قصه لیکنې لارې چارې په واضحه توګه ووینو." (ص ۲۳) هم په دې وجه ښاغلی رفیع له ما غُښتنه کړې ده چې زه دې هم په دې باب له خپله رائې څرګنده کړم. (دا جمله داسې لیکلې شوې ده چې.. مونږ په دې باب له خپله رائې څرګنده کړم." پنځم کالم)

دا ځائې دَ شارټ سټوری (وړې قیصې) پحقله دَ څه مفصل بحث ګنجائش نه لری ځکه نو زه به دا کوشش کوم چې دَ شارټ سټوری په ځائې په دې رساله کښې دَ لیکلې قیصې او شارټ سټوری ترمېنځه څومره فرق دے او آیا دَ دې فرق په موجودګی کښې مونږ دې ته شارټ سټوری وئیلے شو که نه؟ له ټولو نه اګاهو دَ قیصې دَ بیانولو انداز دے. دا قیصه چې په کومه طریقه شروع کېږی او په کومه طریقه مخ په وړاندې ځی هغه دَ لنډې قیصې انداز نه دے. لنډه قیصه کښې دَ قیصې ابتدا ناڅاپه او بغیر له څه تمهیده شروع کېږی. دَ دې په مقابله کښې تاسو دَ دې قصې ابتدائی کرښې ولولئ.

"واوړئ یارانو نن به وکړم څو خبرې
دَ مهتر یوسف له حاله دَ یعقوب له دلګیرۍ

دَ دې قصې اخرې کرښې دا دي:

"بیچاره احمد بیان په پښتو ووې
د صورت نیشته ئې په زیر خپلو؟
په وئیل ئې زړه ښه کاږئ
ولې دے په تورو سترګو مه وینمه
چې دا بیان به لولي یا به ئې څوک اورې دا فقیر یو ګناه ګار دے
پس له مرګه ئې په نیکه دعا ډېر ډېر یادوئ،،

بیا له څو کرښو جوته ده چې دَ قصې لیکونکے تمهیدي او تاکیدي بیان دَ قصې په سر او اخر کښې کوي چې دَ دې له کبله قصې دَ شارټ سټوري له چوکاټه ووځي.

دوېمه خبره دَ کردار نګارۍ سره تعلق لري په ټوله قصه کښې دا کوشش نه دے شوے چې کوم یو کردار دَ مکالمو یا بیانېدو په ذریعه دَ شارټ سټوري دَ کردار درجې ته رسولے شي. نو هر کله چې دَ شارټ سټوري دا عنصر هم په دې قصه کښې مفقود دے نو ځکه دا قصې دَ شارټ سټوري په هغه تعریف نه برابرېږي چې نقادانو دَ کردار په سلسله کښې دَ افسانې دپاره دا ضروري ګڼلے دے.

له دیو نه هم اهمه خبره دَ قصې دَ صنف سره تعلق لري. وړه قصه دَ نثري ادب سره تعلق لري او که دا ثابته کړے شي چې دَ اخون احمد لیکلې دا قصه نثر نه دے نو بیا هڅو دَ دې سوال نه پیدا کېږي چې دې ته دې افسانه ووئیلے شي. اوس نو چې دَ اخون احمد صاحب

لیکلي قصي ته ګورو نو دَ دې په درېو بیلو بیلو حصو کښې درې بیلې بیلې قافیې پکارولے شوې دي. وړومبۍ حصه کښې جدایي، بې غمۍ، ناحقۍ، لوېۍ وغېره الفاظ استعمال شوي دي چې کـه دغـه عبارت دَ شعر په شان ولیکلے شي نو دَ نثر له تعریفه ووځي. دغسې په دوېمه حصه کښې همتونه، غمونه، ملکونه، دردونه او په درېمه حصه کښې کېږي، نازېږي، پوهېږي وغېره قافیې استعمال شـوي دي. په دې لحاظ دا فن پاره نثر نه شي کېدے. او چې دَ نثر لـه مېدانه ووځي نو دَ افسانې له مېدانه پخپله خارجه شي. دَ اخون احمد صاحب سره منسوبه دا قصه په دې لحاظ هم افسانه نـه ده چې دا پـه درېـو حصو تقسیمه ده او هره حصه ئې دَ شعر په شان مقطع لـري یعنـې دا درې مختلفې حصې په تمهیدي بیانونو راګنډلې شوې دي. داسې قصه چې بیلې بیلې حصې لري افسانه نه شي کېدلے. څو پورې چې زه دې قصې ته ګورم نو زما په خیال دا یو داستان دے چې دَ اخون دروېزه دَ شعر په شان نظم کښې لیکلے شوے دے او درې داسې حصې لري چې ځان لـه خپلې قـافیې لـري. لکـه چې مـونږ دَ وروستیـو داستانونـو خصوصیت ګرځېدلے دے او یو لوئې مثال ئې دَ فیاض په هغه داستان کښې موجود دے چې دَ بهرام اوګل اندامې پـه نـوم پـه کلیـد افغانـي کښې چاپ شوے او وروستو دَ پښتو اکېډمـۍ لـه خـوا دَ یـو ځـان لـه کتاب په حېث چاپ شوے دے.

(اووه ورځنے هېواد پېښور ۱۶ ستمبر ۱۹۸۵ء)

# دَ پښتو وړومبنے افسانه نګار

تراوسه زمونږ دَ ټولو ادبی تاریخ لیکونکیو دا عقیده ده چې دَ پښتو وړومبنے افسانه نګار مرحوم راحت زاخېلی (۱۹۶۳.۱۸۸۷ء) یا (۱۹۶۳.۱۸۸٤ء) وو. دَ افسانې په تاریخ او تنقید کار کونکیو ټولو نقادانو دَ وړومبۍ افسانې دَ لیک (یا شاید دَ چاپ) کال ۱۹۱۷ء ښئیلے دے. دَ محترمې س. ب. ب صاحبې رائې چې ماته دَ هغوی دَ خاندان دَ څنو افرادو په ذریعه رارسیدلې ده دا ده چې وړومبۍ افسانه مرحوم ابوالمعانی میاں ازاد ګل (۱۹۵۰.۱۸۹۵) لیکلې او چاپ کړې ده. هسې دَ یو اټکل له رویه دَ دې افسانې دَ چاپ کال ۱۹۱۰ء بیانیږی. دې ضمن کښې دا حقیقت زمونږ څه نه څه رهنمائی کوی چې په کوم وخت کښې ابوالمعانی ازاد ګل مرحوم دَ یو لیکونکی په حېثیت تسلیمېدو تر هغه وخت کم از کم په هغه سطح استاذ راحت زاخېلی مرحوم نه وو تسلیم شوے او یو ثبوت ئې دا دے چې دَ "قصه خوانۍ ګپ" کښې دَ مرحوم میاں صاحب تخلیقات شامل شوی دی خو دَ راحت مرحوم دَ کتابت باوجود په دغه کتاب کښې دَ راحت صاحب په نوم څه شے (بغېر له یو نیم شعره) نه دے چاپ. بهرکیف زهٔ دا حتمی ثبوت تر هغې نه شم ګڼلے تر څو چې ما دَ مرحوم میاں صاحب افسانه نه وی پیدا کړې او انشاء الله چې ډېر ژر به زهٔ پښتون اولس ته دَ مرحوم افسانه پېش کړے شم. لیکن سره دَ دې که چرې دَ مرحوم میاں صاحب افسانه راپیدا هم شی هغوی دَ پښتو وړومبنے افسانه

نګار منل به ګران وی ځکه چې ما له ۱۹۱۰ء نه هم مخکښې لیکلې شوې افسانې پیدا کړی دی او هغه افسانې راتلونکیو پاڼو کښې ګرانو لُستونکیو ته پیش کوم.

ما دَ "قند" مردان په افسانه نمبر (۱۹۵۷ء) کښې دَ افسانې دَ تاریخ په سلسله کښې دا عرض کړے وه چې شاید دَ دنیا له ټولو نه وړومبنی افسانه دَ لوقا دَ انجیل هغه تمثیل دے چې دَ "فضول خرځ هلک دَ قصې" په نامه مشهوره ده. دا تمثیل دَ "پیرابل اوده براډیګل سن" یا په ځنې انجیلونو کښې دَ "پیرابل اوده لاسټ سن" (د ورک زوی قصه) په نامه دَ پنځلسم باب دَ یولسم ایت نه ٤٣ ایته راغلے دے. (البته هم دَ دغه لیک او چاپ دَ زاړه عهد دَ کتاب چې په ۱۸۹۰ء کښې چاپ شوے دے دَ مترجم نوم ریورنډورتهنګټن جیوکس دے) نو په دې لحاظ خو وړومبی افسانه په پښتو کښې هم دَ دغې تمثیل ترجمه ګڼل پکار دی. پښتو کښې په وړومبی ځل دَ انجیل ترجمه په ۱۸۱۸ء کښې دَ سیرام پور پادریانو کړې وه چې اوس هیچرته نه شی موندے. په دغه ترجمه دَ پښتو لوئې محسن میجر راورټی ډیر سخت تنقید کړے دے. دے وائی " دَ سیرام پور دَ پادریانو له خوا په ۱۸۱۸ء کښې شوې دَ نوې عهد نامې نام نهاده ترجمه دغو مقدسو تحریراتو سره ډیر کم تعلق او مشابهت لری. په حقیقت کښې دَ دغه ترجمې لُستل ډیر دړدونکے امر دے." (ګرامر او دَ افغان لینګویج مقدمه ص ٤٣)

محترم قاضی محمد یوسف فاروقی په خپلو قلمی یاداشتونو کښې وئیلی دی چې دَ انجیل مقدس یوه ترجمه راورټی او بله ریورینډ

لېونتال کړې وه ولې دَ افسوس خبره دا ده چې مونږ ته اوس دا پته هم نۀ لګی چې دَ راورټی او لېونتال ترجمه شوی انجیلونه کوم یو دی او کله چاپ شوی دی. البته ما سره چې دَ نوی عهد دَ کتاب کومه نسخه ده هغه په ۱۸۹۹ء (۱۳۰۶هجری) کښې چاپ شوې ده او دَ دغه نسخې په باره کښې معلومات شته چې دا رېورنډورتهنګټن جیوکس او ټی جے لی مهر لیکلې ده. څکه نو دا خو وئیلے شو چې دَ لوقا دَ انجیل ذکر شوے تمثیل (چې زما په خیال دَ افسانې تعریف پرې پوره پوره راځی) په ۱۸۱۸ء او په ۱۸۸۹ء کښې چاپ شوے وه خو په قطعیت سره دا نۀ شو وئیلے چې وړومبے افسانه نګار څوک وه. البته دَ دغې تمثیل دَ ترجمه کونکی په حیثیت دَ سیرام پور پادری، ایچ جی راورټی لېونتال تهامس جان لی مهر او ورتهنګټن جیوکس ته اشاره کولے شو. خو دا دَ پښتو وړومبۍ افسانه نه بلکې پښتو کښې دَ دنیا دَ وړومبنۍ افسانې ترجمه شوه او تکنیکی لحاظ سره دَ دې لیکونکے هم دَ پښتو وړومبے افسانه نګار نۀ شو.

زۀ چې اوس کوم افسانه نګار متعارف کول غواړم دَ هغۀ نوم جے جی لوریمر دے. چې په پښتو کښې دَ "لړم پیرنګی" په نامه مشهور دے او خپل خان ته ئې هم ډېر په فخر "لړم پیرنګے" لیکلے دے. دَ دۀ په باره کښې صرف دومره معلومات په ګوتو راغلی دی چې دې یو آئی سی ایس افسر وه چې په ۹۸.۱۸۹۷ء کښې ټوچی فیلډ فورس سره متعلق وه او په ۹۹.۱۸۹۸ کښې دَ شمالی وزیرستان پولټیکل افسر وه. ۱۹۰۰ــ۱ کښې دَ محسودو پلاکیډ افسر وه په ۱۹۰۱ء کښې دې دَ جنوبی وزیرستان پولټیکل افسر وه او ۱۹۰۲ء

کښې ئې بیا شمالی وزیرستان کښې دَ پولټیکل افسر په حیثیت تقرر وشه او لېم پېرنګی دَ وزیرو دَ پښتو په باره کښې یو کتاب دَ "اے ډکشنری او وزیری لینګویج" په نامه لیکلے دے. دا کتاب په فروری ۱۹۰۲ء کښې لهٔ کلکتې چاپ شه او دا قیاس کولے شو چې دَ دې کتاب مندرجات په ۱۹۰۱ء کښې مکمل شوی وو ځکه چې دَ کتاب کمپوز کول او بیا ئې پروف ریډنګ کول او دَ وزیرستان او کلکتې تر منځه دې کتاب ته دَ اخری شکل ورکولو دا کار دَ ۱۹۰۲ء په دوه میاشتو کښې ممکن نه وه.

"اے ډکشنری او وزیری لینګویج" کښې دوه افسانې هم شاملې دی. دېو دوه افسانو کښې یوه خو هم هغه دَ لوقا دَ انجیل دَ ورک زوئی قصه (دَ فضول خرځ هلک ده) او دوېمه یوه طنزیه افسانه ده او ځکه دا دعویٰ په یقین سره کېدے شی چې دَ پښتو وړومبۍ افسانه دَ دې صدۍ په سر کښې لېم پېرنګی (جے جی لوریمر) لیکلې ده چې دَ اشاعت کال ئې ۱۹۰۲ء دے.

دغه دواړه افسانې ګرانو لُستونکیو ته دَ پیش کولو سعادت حاصلهٔ م. اول دغه افسانې دَ وزیرو په لهجه کښې لیکلے شوی دی او بیا ورپسې په مشرقی لهجه کښې اړولے شوی دی.

دا خبره ډېر زیات اهمیت لری چې نورو انګرېزانو مستشرقینو دَ خپلو مطبوعاتو په سلسله کښې لهٔ خپلو منشیانو نه مدد اخستے دے. مثلاً ایچ جی راورټی دَ حضرت مولوی محمد اسمٰعیل صاحب او حضرت مولوی احمد صاحب نه او هیوز لهٔ منشی احمد جان مرحوم ځنې ښه کافی مدد اخستے دے او دواړو فاضلو مستشرقینو دَ دې

حقیقت اعتراف هم کړے دے خو په ۱۹۰۲ ء کښې دَ دې خبرې بالکل امکان نه شو کېدے چې لړم پېرنګی ته داسې وزیر منشی حاصل شوے وے چې په انګرېزی هم پوهېدے. ځکه نو قوی امکان دا دے چې دا افسانې او دَ دې کتاب مندرجات دَ لړم پېرنګی له قلمه وتی دی.

(روزنامه "انقلاب" پېښور میاشتنے ایډیشن ۱ مارچ ۱۹۸۶ء)

# دَ عبدالقادر خان خټک شاعري

عبدالقادر خان دَ خوشحال بابا دَ اولاد په فهرست کښې په لسم نمبر راځي. دے دَ زر درې شپېته کال دَ لوئې اختر دَ میاشتې په پنځویشتم تاریخ زیږېدلے وه او عبدالقادر خان نه ئې دَ ابجدو په حساب دَ پیدائش کال راووځي. په دې لحاظ چا چې دَ ده دَ پیدائش بل کوم کال لیکلے دے محض دَ اټکل او اندازې نه ئې کار اخستے دے.

دَ خوشحال بابا په اولاد کښې چې دَ چا دیوان مخکښې چاپ شوے وه هغه هم دَ عبدالقادر خان وه په دې لحاظ په دې خاندان کښې دَ خوشحال بابا نه پس له ټولو نه زیات مشهور او معروف شاعر هم هم دے دے. دَ عبدالقادر خان دیوان تر اوسه درې ځله چاپ شوے دے. یو ځل له قندهاره او دوه ځله له پېښوره چاپ شوے، وروستے دیوان دَ "حدیقهٔ خټک" نوم لري حالانکې وړومبی ځل چاپ شوی دیوانونه ئې هم دَ "دیوان" نوم لري. ځکه نو دا قیاس کېدے شی چې دَ عبدالقادر خان دیوان دَ "حدیقهٔ خټک" په نامه چاپ کول دَ پټې خزانې دَ اثر دَ لاندې شوی دی.

دَ عبدالقادر خان ذکر خوشحال بابا ډېرو ځایونو کښې کړے دے. دَ نوښار دَ کوټ په جنګ کښې دَ عبدالقادر خان دَ شمولیت شهادت لرو او هم دغسې دَ دې خبرې هم تحریری شهادت شته چې عبدالقادر خان دَ ګومبت په جنګ کښې پلار سره شامل وه او دې

جنګ کښې زخمي شوے هم وه.

د عبدالقادر خان په دیوان کښې د هغه دور د مختلفو واقعاتو ذکر هم شته چې دا ترې ثابتیږي چې عبدالقادر خان د خپل دور په سیاسي او عمراني پېښو کښې ښه دلچسپي لرله. د خپل عظیم معاصر شاعر رحمان بابا ذکر په دې شعر کښې کوي:

زه خټک د یار په غم تازه تازه شوم

غوریه خېل رحمان که شه ورځنې ستړې

هم دغسې په هغه مشهوره قصیده کښې چې مطلع ئې دا ده:

دا کارونه چې نن ګانده عیاني دي

هیڅ په خوا په خاطر نه وو اسماني دي

د ګل خان جمال خان د هغه واقعې طرف ته اشاره کوي چې رحمان بابا او حمید مومند هم پرې نظمونه لیکلي دي.

د عبدالقادر خان په شاعرۍ لکه د هغه د خاندان د نورو شاعرانو د خوشحال بابا د شاعرۍ ډېر زیات اثر دے. او شاید هم د دې اثر یوه نتیجه دا هم ده چې عبدالقادر خان نه صرف د خوشحال بابا په زمکه کښې غزلې لیکلي دي بلکې په خپلو موضوعاتو کښې ئې هم د خپل پلار تقلید او پېروي کړې ده. د دې سره سره په خپل کلام کښې اکثره د خوشحال بابا ذکر هم کوي مثلاً:

دا غزل ځواب د خان د هغه غزل کیږي

خدائې له خپله یاره نه هیڅ یار مه بیلوه

دا غزل په پښتو ژبه چې بیان عبدالقادر کړه

دروغژن یم که بې خانه وائي بل یو پښتون هسې

خان خوږه کړه تر پارسی عبدالقادره

کـه پـخوا وه تـرخه ژبـه دَ پښتو

تر شکرو نه دی کم عبدالقادره

تر نباتو که خواږه وئیلی خان دی

دَ شاعرۍ دَ موضوعاتو په تناسب عبدالقادر خان که هر څو کم وئیل کړی دی او دَ هغه دیوان دومره ضخیم نه دے څومره چې دَ خوشحال بابا دے خو سره دَ دې هم دَ "غم جانان" دَ ذکر نه پس چې عبدالقادر خان کومو موضوعاتو ته اهمیت ورکړے دے هغو کښې ئې دَ سیاست په باره کښې دَ خپل پلار دَ رائې تائید کړے دے:

پښتانه کوته اندېش دی

سود غلیم ته زیان دَ خوېش دی

نوشدارو پکښې نایاب دی

واړه زهر واړه نېش دی

حریصان طامع ورږ سترګی

په بد خوئی مالګه دَ رېش دی

دې قصیده کښې عبدالقادر خان خټک چې دَ خپلې زمانې په حالاتو کوم تنقید کړے دے له هغې معلومیږی چې دَ خپل دور معاشرې سره عبدالقادر خان لکه دَ هر لوئې فنکار واضح اختلافات لرل او دَ خپل کلام په ذریعه ئې دَ دې معاشرې تور اړخونه څرګندول خپل فرض ګڼل.

تصوف دَ مشرقی شاعرۍ او خاص طور سره دَ غزل یوه ډېره مشهوره روایتی موضوع ده. زمونږ په شاعرۍ کښې دَ ارزانی، مخلص، میرزا، خوشحال بابا او رحمان بابا په شاعرۍ کښې دَ تصوف

یوه ډېره لویه حصه ده. زمونږ دا ټول لوئی شاعران دَ تصوف دَ یو مشهور مکتب وحدت الوجود سره تعلق لری. خو دَ دوئ په مقابله کښې عبدالقادر خان شاید چې دَ پښتو وړومبنے شاعر دے چې دَ وحدت الشهود نظریه ئې په خپله شاعری کښې راخائې کړې ده. دَ دې وجه دا ده چې دَ عبدالقادر خان تعلق سعدی لاهوری سره وه چې دَ حضرت آدم بنوری مرید وه او پخپله حضرت آدم بنوری دَ حضرت مجدد الف ثانی شاګرد او خلیفه وه. دَ حضرت مجدد الف ثانی له ټولو نه لویه عطیه دَ تصوف دنیا ته دَ وحدت الشهود نظریه ده او عبدالقادر خان په خپله شاعری کښې هم دا نظریه ځائې کړې ده. دا شعرونه ئې خاص طور سره دَ غور قابل دی:

دلبر مخ راته ښئیی په هر آئین کښې

ګاه په تور کښې جلوه ګر شی ګاه په سپین کښې

کله کله په ترسا کښې مخ څرګند کا

دَ صنعان په دود ئې وران کاندی په دین کښې

په هر څه کښې ګوره یار عبدالقادره

که دې نشته شک ګُمان په خپل یقین کښې

دا صحی ده چې دَ خوشحال بابا له یوه شعره:

په هر څه کښې ننداره دَ هغه مخ کړم

چې لــه ډېرې پیدائییه ناپـدیـد شه

دَ وحدت الوجود استنباط کېدے شی لکه چې پښتو ادب سره دلچپسی لرونکیو ته معلومه ده دَ خوشحال بابا په هم دې شعر دَ دې زمانې مشهور وحدت الوجودی غزل لیکونکی امیر حمزه خان شنواری مفصل

بحث په خپل کتاب کښې کړے دے او دا ئې ترې دَ ثابتولو کوشش کړے دے چې خوشحال بابا وحدت الوجودی نظریه لرله.

هم دغسې دا شعرونه:

څو خبر نه دے وګړے له دې رازه
ګنه بیل حقیقت نه دے له مجازه
عارفان چې له خودیه خان خالی کړه
تسبیح اوری دَ شپېلۍ دَ اوازه

هم دَ هغه دَ تصوف په سلسله کښې دَ مثال په طور پېش کېدے شی.

خودرحمی Self Pity هم زمونږ دَ غزل یو نمایان روایت دے او څومره څومره چې دا خودرحمی په کوم شاعر کښې زیاته وی دومره دَ هغه په کلام کښې سوز او په نتیجه کښې ئې اثر زیات وی. دَ عبدالقادر خان غزل کښې دا عنصر ډېر زیات او ډېر زورور دے.

تا خُوږ کړے یم هم ته به مې دارو کړې
بې له تا به و نور چا وته فریاد کړم
تور لوګی دَ خلې اوښې دَ سترګو سرې
دواړه په دا حال باندې ګواهان لرم
یو ساعت ئې خوشحالی اندوه وی عمر
اشنائی دې هیڅوک نه کاندې که ښه کا
چې قلم دَ جدایۍ زما واهه شه
په ژړا مې سترګې سرې کړې و شبنم ته

دَ کلام دَ اندرونی خوبیو دَ دې مختصرې غُندې جائزې نه پس دَ عبدالقادر خان دَ شاعرۍ خارجی محاسنو ته چې نظر وکړو نو

راڅرګندیږي چې عبدالقادر خان په هغو شاعرانو کښې دے چې شعوري کوشش ئې په دې غرض کړے دے چې دَ پښتو شاعرۍ لمن وسیعه کړي. په دې لړ کښې هغه نه صرف مختلفو اصنافو کښې شاعري کړې ده بلکې په مختلفو ژبو کښې ئې هم شاعري کړې ده. دَ فارسۍ شاعرۍ اندازه ئې له دې غزله کېدے شي:

چو زلف عنبرین را پیچ و خم کردی کرم کردی
دلم را از سر نو بند غم کردی کرم کردی
چو بکشودی نقاب از رخ نمودی عارض زیبا
شب اندوه ما را صبحدم کردی کرم کردی

خو له دې علاوه هغه دَ دوه ژبو شاعري (ذواللغتین) هم کړې ده. مثالونه ئې دا دي:

دَ پښتو او عربۍ غزل:

مخ په هر لوري جلوه ګر دے دَ یار
ابصروا ابصروا اولی الابصار
بې محابا راکره کېږده قدم
لیس فی الدار غیرنا دیار

دَ پښتو او فارسۍ غزل:

زړه مې هرګور وه له هجرانه افګار
شکر حق را که باز آمد یار
سروه سر کوز له انفعال کاندې
چون خرامد به سوئے باغ نګار

دَ غزل نه علاوه دَ عبدالقادر خان اوږده نظمونه هم شته چې يوه اوږده مثنوي پکښې دَ يوسف زليخا دَ مشهورې مثنوئ ترجمه ده. دا ترجمه عبدالقادر خان په يولس سوه دولس کښې مکمله کړې ده. ترجمه په اته سيلابيز بحر کښې ده. دَ دې مثنوي وړومبی څو شعرونه دَ نمونې په طور داسې دی.

دا قصه اول تازی وه
په تازی ئې اغازی وه
په فارسئ کړه فارسيبانو
نظم نثر سخن دانو
ما هم بيله ترې حصه کړه
په پښتو مې دا قصه کړه
ما شيرين بحر خفيف کړه
بې څوابه مې حريف کړه

برنهارډ ډورن او راورټي دَ دې مثنوي حصې په خپلو منتخباتو کښې راوړی دی او بيلې هم چاپ شوی دی.

دَ دې نه علاوه عبدالحئ حبيبی مرحوم دَ "نصيحت نامه" او "ځلوېښت حديث" په نومونو دَ بيلو بيلو مثنويو نسبت هم عبدالقادر خان ته کړے دے خو لا تراوسه دا مثنوئ چاپ شوی نه دی.

دَ نظم نه علاوه عبدالقادر خان پښتو نثر هم سبکن کړے دے. دَ ګلستان پښتو ترجمه ئې دَ ګلدسته په نامه ليکلې ده چې يو لوئې خصوصيت ئې دا دے چې نثر ئې په نثر او نظم ئې په نظم کښې ترجمه شوے دے. دا عظيمه فن پاره پښتو اکېډيمئ چاپ کړې ده. له

دي نه مخکښې ئې راورټي ګلشن روه کښې منتخبې حصې هم چاپ کړي دي.

دَ راورټي وېنا ده چې عبدالقادر خان شپېته کتابونه ليکلي وو خو لکه دَ خوشحال بابا دَ ده هم دَ نورو کتابونو پته نه لګي.

راورټي دَ ده دَ مرګ په باره کښې دا روايت هم بيان کړے دے چې دے خپل ورارهٔ افضل خان وژلے وه ځکه چې عبدالقادر خان دَ ده سرداري نه منله. والله اعلم بالصواب.

(دريې مياشتنۍ کتابي سلسله مرکه مردان اوله کړۍ نومبر ۱۹۸۹ء)

# ادب کښې شخصيت

دَ انسان او نورو حيواناتو تر مينځه دَ فرقونو په سلسله کښې دَ مختلفو علمونو سره دَ تعلق لرونکيو مختلف خيالات او نظريات دي. دَ معاشرتي علومو په ميدان کښې دَ کار کونکيو په خيال کښې انسان او دَ حيواناتو تر مينځه فرق دا دے چې انسان يو معاشرتي ځناور دے. او نور ځناوران دَ معاشرتي شعور نه محروم دي. دَ سياسياتو دَ علم سره دَ متعلقو حکيمانو او مفکرانو په نظر کښې انسان يو سياسي ځناور دے چې دَ خپل سياسي شعور په نتيجه کښې دَ خپل ځان په شان مخلوق دپاره څه داسې سياسي قاعدې او قانونونه جوړوي چې دَ هغو په نتيجه کښې دَ خپل ځان په شان شعور لرونکيو له ذهني او روحاني خوشحالي او مسرت پيدا کوي. او دَ ذهني او روحاني مُسرتونو په نتيجه کښې دَ مادي مسرت دَ حصول کوشش کوي.

هم دغسې دَ فنون لطيفه سره تعلق لرونکے انسان حيوان ناطق يعنې خبرې کوونکے حيوان ګڼي. او هم دغه خبرې دي چې دَ ادب په معنو کښې دَ يوې اصطلاح په صورت استعماليږي. خوشحال بابا وائي چې :

دَ خبرو ملک مې فتح په سمند کړه

نو دَ خبرو نه مطلب ئې ادب وي. دغسې دَ خبرو دَ اقليم نه مراد "اقليم سخن" وي او عجيبه حسن اتفاق دا دے چې په فارسي کښې هم دَ

سخن او سخنوری اصطلاح دَ شاعری او ادب دپاره مخصوص شوې ده حالانکې دَ پښتو په شان فارسی کښې هم دَ سخن اصل معنیٰ "خبره" ده. خو هرکله چې دَ حېوان ناطق خاصیت خبرې او سخن ګوئی ګڼلې شوه ځکه نو دې اصطلاح رواج بیاموندلو.

دې ته هم حسن اتفاق ووایئ چې په عربی کښې که یو خوا خبرو ته کلام وائی نو بل خوا شاعری هم، هم په دغه نوم نوملے شی. بلکې په ادبی اصطلاح کښې دَ شاعری تعریف "کلام موزون" ګڼلے شی.

دا اوږده خبره ما دې دپاره عرض کړه چې لکه څنګه خبرې، سخن ګوئی او کلام دَ انسان هغه خاصه ده چې هغه پرې له نورو حېواناتو نه ممتاز کېږی دغسې دَ معاشرتی حېوان په حېث هغه په فطری ډول مجبور دے چې په معاشره او جامعه کښې خپله خبره وکړی او دَ بل خبره واوری او دَ دې خبرې کولو او خبرې اورېدو چل ته دَ یو اسان تعریف مطابق مونږ ادب وئیلے شو.

هر حېوان ناطق چې دَ خبرو کولو داسې چل زده کړی چې هغه خپله خبره په غوره طریقه بل حېوان ناطق ته ورسوی نو دے تر دغې درجې ادب پېدا کوی. هم دغسې هر حېوان ناطق دَ بل حېوان ناطق په خبره دَ پوهېدو کوشش شروع کړی. او دې کوشش کښې تر دومره حده کامیاب شی چې دَ شوې خبرې ټول تفصیلات دَ خپلې پوهې په ګرفت کښې راولی نو دَ داسې عمل تکرار دَ ادب پېدا کولو باعث وګرځی او چې دَ صدیو دَ مشق نه پس دا "زبانی ادب" دَ لیک جامه واغُندی نو تحریری ادب مېنځ ته راشی او فنون لطیفه کښې دَ یو فن اضافه وشی.

دَ ادبی تنقید پوهان په دې خبره متفق دی چې دَ ادب دَ پېدائش يوه وجه دا هم ده چې معاشرتی حېوان په خپله معاشره کښې دَ نورو معاشرتی حېواناتو له ژونده څان خبرول غُښتل. داسې دَ ژوند په سر بنده دروازه کښې دَ خپل سر بوسولو او دَ تلاش دې عمل نه ورو ورو ادب او شاعری راوځېګېده او ترقی ئې داسې ومونده چې هغو کومو معاشرتی حېواناتو چې دا کار نه شو کولے هغوی دَ خپلو هم جنسو له دې خبرو او ډېره موده وروستو له ليکلو نه هم هغه خوند اخستل شروع کړه کوم چې دَ دوی هم جنسو دَ نورو هم جنسو دَ ژوند په کوټو کښې دَ سر بوسولو نه اخستل. په دې خبره چې لږ ښه ژور غور وکړو نو دا راته واضحه شی چې دَ يو شخصيت له خوا دَ بل شخصيت په ژوند خبرېدل، دا معلومات نورو ته رسول او بيا دَ نورو له خوا لَه دې معلوماتو نه خوند اخستل په اصل کښې دَ ادب پېدا کېدو او دَ ادب دَ رواج موندلو رښتينے بنياد دے. خو دا خبره به لږه په تفصيل کول غواړی.

(درې مياشتنی کتابی سلسله مرکه مردان (مقاله نمبر) جنوری ۱۹۹۰ء)

# دَ معز الله خان په باره کښې
# دَ ځنې تاريخي غلطيو ازاله

تر اوسه دَ معزالله خان مومند دَ ديوان درې ايډيشنونه چاپ شوي دي. وړومبے ايډيشن ښاغلي همېش خليل په اکتوبر ۱۹۵۷ء کښې چاپ کړه. دوېم ايډيشن پښتو اکېډيمۍ دَ ښاغلي خيال بخاري دَ مقدمې سره په اګست ۱۹۵۸ء کښې چاپ کړو او درېم ايډيشن ئې بيا ښاغلي همېش خليل (سره دَ اضافې) په دوېم ځل په جنوري ۱۹۶۱ء کښې شائع کړه.

دَ کتاب وړومبے ايډيشن زما له نظره نه دے تېر شوے او نه اوس چرته پېدا کيږي چې دا اندازه ترې ولګولے شي چې ښاغلي همېش دَ وړومبي ايډيشن په مقدمه کښې څه وئيلي وو خو دَ دوي دَ دوېم ايډيشن او دَ اکېډيمۍ دَ ايډيشن په مقدمو کښې چې څه ليکلي شوي دي هغو کښې ځنې خبرې داسې دي چې زما په خيال تاريخي لحاظ سره صحيح نه دي او زه ځکه په دې مختصره مقاله کښې دا کوشش کول غواړم چې دَ دغو غلطيو اصلاح وشي.

وړومبۍ تاريخي غلطي زما په نزد دَ دواړو محترمو ليکونکيو نه دا شوې ده چې دَ دوي په خيال دَ اربابۍ خطاب به حکومت ورکولو.

"…. خو شاهجهان باچا دَ معزالله خان پلار او تره (عبدالله خان او محب الله خان) له رسماً دَ اربابۍ منصب ورکړه." (دَ اکېډيمۍ

ایډیشن دَ مقدمې ص ۹)

"کوم وخت چې شاهجهان بادشاه دَ ملکی نظام ښېره چلوله نو دَ خپلې عامې پالیسۍ ماتحت ئې دَ پښتونخوا دَ ځنو علاقو پښتانه مشران دَ اربابۍ په خطاب دَ عزت بخشۍ نه علاوه دَ خپل مقصد دَ پوره کولو په غرض دَ هغو دَ هر قسمه حوصله افزائی هم وکړه. (هم داسې) هغه سلسله کښې شاهجهان بادشاه دَ باړې دَ مومندو دَ انتظام او مغلی حکومت دَ وفادارۍ شرف یعنې دَ اربابۍ خطاب عبدالله خان او محب الله خان ته په مساوی حصه ورکړه. (دَ ښاغلی همېش مرتب کړے دوېم ایډیشن مقدمه ص. ب)

حالانکې دا یو داسې حقیقت دے چې هیڅ دلیل ته احتیاج نه لری چې ارباب دَ خلیلو مومندو داؤدزیو او کاسیانو دَ خانانو موروثی لقب دے. که چرې دَ اربابۍ خطاب دَ حکومت له خوا عطا کېدے نو اول خو به ئې دَ مغلو په سرکاری کاغذونو کښې ذکر وه او بیا دا چې دَ غوریا خېلو او کاسیانو نه بغیر بل کوم منصب دار ته به هم دا خطاب چرې خو ورکړے شوے وے. دَ ۱۵۲۶ء نه تر ۱۸۵۷ء پورې دَ یو مغل باچا له خوا چاته دَ اربابۍ خطاب نه دے ورکړے شوے ځکه نو دا یوه داسې غلطی، ده چې دواړو ښاغلیو لیکونکیو (همېش خلیل او خیال بخاری) په شریکه کړې او څه تاریخی بنیاد نه لری.

له دغې نه هم زیاته لویه غلطی هم دغو اقتباساتو کښې دا شوې ده چې دَ ښاغلیو لیکونکیو په خیال دَ معزالله خان پلار او تره (عبدالله خان او محب الله خان) ته دَ اربابۍ خطاب شاهجهان ورکړے وه.

دوا پړو محترمو ليکونکيو چې پخپلو مقدمو کښې دَ معزالله خان مومند کومه شجره دَ نسب ورکړې ده دَ هغې مطابق معز الله خان دَ عبدالله خان، عبدالله خان دَ محمد خان او محمد خان دَ مستجاب خان زوئې وه. مستجاب خان بغير له څه شک و شبهې په خيبر کښې دَ محمد امين خان دَ شکست (۱۰۸۳هجری) نه پس ته شهيد کړے شوے وه. دَ مستجاب دَ شهادت په وخت کښې اورنګ زيب دَ هندوستان شهنشاه وه. ځکه نو که تخيل لکه دَ ربړ هم راکښے شی نو دا څوک نه شی وئيلے چې نيکه خو دې دَ اورنګزيب په زمانه کښې شهيد کيږی او نمسے دې ئې دَ شاهجهان باچا نه خطاب وصولوی. (دا ياد ساتل پکار دی چې شاهجهان ۱۰۲۶هجری قمری کښې په تخت ناست وه او ۱۰۶۸هجری قمری کښې وفات شوے وه).

دې غلطۍ سره تړلې يوه بله غلطی دَ اکېډيمۍ دَ ايډيشن مقدمه نګار بناغلی خيال بخاری دا کړې ده چې دَ دوی دَ "اټکلي اندازې" مطابق معزالله خان مومند په ۱۰۸۵هجری کښې پيدا شوے وه لکه چې دَ مخه ذکر وشه دَ معزالله خان غُر نيکه مستجاب خان په ۱۰۸۳هجری کښې شهيد شوے وه. په دې لحاظ دَ معزالله خان پيدائش په ۱۰۸۵هجری کښې که ناممکن نه دے نو انتهائی غير اغلب ضرور دے. ځکه چې که مونږ دا ومنو چې معزالله خان په ۱۰۸۳هجری کښې پيدا شوے وه نو په ډيره لنډه اندازه دَ هغه غُر نيکه به دَ هغه نه سل کاله اګاهو پيدا شوے وی. په دې حساب دَ مستجاب خان مومند دَ پيدائش نيټه ۹۸۳ هجری کيږی او دا دَ هغو ټولو اندازو برخلاف ده چې دَ تاريخ له مختلفو واقعاتو نه دَ مستجاب

دَ ژوند پهٔ حقله لګیدے شي.

خدائې خبر چې ولې خو دَ دیوان دواړو مقدمه لیکونکیو پهٔ تقریباً یو شان الفاظو کښې دا دعویٰ کړې ده چې دَ معزالله خان خاندان یعنې دَ لنډی اربابان دَ هر حکومت "وفادار" پاتې شوی دی حالانکې دا خبره پهٔ دومره عمومی ډول صریحاً غلطه ده.

دواړو محترمو لیکونکیو دَ پېرنګی دَ دور دَ ځنې افسرانو دَ لیکونو پهٔ بنا دا دعویٰ کړې ده چې اربابانو تل (یعنې تل) دَ وخت دَ حکومت مرسته کړې ده. حالانکې حقیقت دا دے چې مغلو مستجاب پهٔ سیاسی بنیاد شهید کړے وهٔ او خوشحال بابا لهٔ یوهٔ نه زیاتو ځایونو کښې دا منلې ده.

دَ ۱۶۳۰ء پهٔ مشهور قومی تحریک کښې مومند دَ پښتنو دَ لښکر سره وو. (وګورئ تاریخ مرصع ص. ۱۱۳ قلمی ص. ۱۷۳ نوټ ۲) دَ سیکانو برخلاف جدوجهد کښې دَ ارباب رحمت الله خان او احمد خان ټول جائداد ضبط کړے شهٔ. دَ سردار یار محمد دَ لاسه دَ ارباب ارسلا خان دَ جائداد ضبطی او دَ هغهٔ ګرفتاری دا ټولې خبرې پهٔ دې باب له کافی شهادت دے چې کهٔ یو خوا دَ اربابانو دَ خاندان ځنې خلقو دَ حکومت مرسته کړې ده نو بله خوا داسې نران اربابان هم وو چې دَ پښتانهٔ پهٔ ننګ ولاړ وو.

پاتې شوه دا خبره چې اربابانو دَ سیکانو برخلاف دَ پېرنګیانو ملګرتیا کړې ده نو نهٔ خو دا دَ شرم خبره وه او نهٔ ئې زهٔ تردید کوم. اصل حبره دا وه چې دَ سیکانو پهٔ دور کښې پهٔ پښتنو او خاص طور سره پهٔ لویو کورنیو دومره ظلمونه شوی وو چې هغوی دَ سیکانو

برخلاف جدوجهد کښې سرو کافرو سره هم په ملګرتيا مجبور شوی وو او د تاريخ پشاور په حواله چې کوم دستاويزی ثبوتونه ښاغليو مقدمه ليکونکيو پېش کړی دی له هغو صرف دا ثابتيږی چې اربابان هم لکه د نورو پښتنو د سيکانو د ظلم برخلاف د هر چا سره د ملګرتيا دپاره تيار وو او په دې لړ کښې ئې خپلې ذمه وارۍ ښه په نره پوره کړی دی.

د معزالله خان مومند په باره کښې بله تاريخی غلط فهمی د ښاغلی عبدالحليم اثر افغانی له هغه بيانه پېدا کيږی چې د خپل کتاب "روحانی رابطه او روحانی تړون" په ص. ۷۷۶ ئې کړے دے او چې پکښې ئې وئيلی دی چې معزالله خان د سربند (سنګو سربند) اوسېدونکے وو لکه چې هر چا ته معلومه ده سربند د خليلو کلے دے او تر څو چې ډېر درونډ ثبوت نه وی پېش شوے د مومندو د اربابانو د خليلو په علاقه کښې اوسېدل ډېر غېر اغلب دی او هر کله چې ښاغلی اثر د خپل عادت سره سم دې لړ کښې څه ثبوت نه دے پېش کړے نو مونږ ئې دا دعویٰ نه شو منلے چې ارباب معزالله خان مومند د سنګو سربند وو.

خاص طور سره په داسې صورت کښې چې د اکېډيمی د ايډيشن د مقدمې په ص ۸ باندې د دې خبرې دستاويزی ثبوت هم شته چې معزالله خان د کوټله مستجاب (چې وروستو ئې نوم کوټله محسن خان شو) اوسېدونکے دے. دا هيڅ کله د منلو خبره نه ده چې ارباب معزالله خان مومند د سنګو سربند وو.

(درې مياشتنے "جرس" کراچی جنوری تا مارچ ۱۹۹۱ء)

# اکبر زمینداوری

دَ اکبر زمینداوری پېژندګلو په وړومبی ځل مونږ سره ښاغلی عبد الحئ حبیبی مرحوم دَ "پښتانه شعراء لومړی ټوک" په ذریعه په ۱۳۲۰ هش (۱۹٤۱ء) کښې کړې وه. د حبیبی مرحوم د نورو انکشافاتو غُندې دَ هغوی دا انکشاف هم بغېر له څه بحثه ومنلے شه او هیچا پرې دَ څه اضافې کولو کوشش ونه کړه. حبیبی مرحوم زمونږ دَ تاریخ په یو داسې دور کښې پېدا شوے وه او دَ هغوی علم و فضیلت تر دې حده ګڼلے شوے وه چې دَ هغوی ټول لیکونه پښتو ویونکی قوم بغېر دَ جرحې او تعدیله قبلول. دا دور پښتون له دَ تاریخ جوړولو دور وه. سیاسی هم او ادبی هم. او مرحوم عبدالحئ حبیبی په دواړو مېدانونو کښې دَ پښتنو ډېر ضرورتونه پوره کړه.

د اکبر زمینداوری په سلسله کښې چې مرحوم عبدالحئ حبیبی دَ هغه له یوه شعره:

د مغلو تېمر هسې په اور وسوم
چې به هېر په دا ماتم زمینداور کړم

دا استنباط وکړه چې دے دَ تېمور لنګ (۸۰۷ ـــ ۷۷۱) دَ دور شاعر او دَ زمینداور اوسېدونکے وه نو هیچا پرې څه اعتراض ونه کړو او نه ئې ترې دَ څه سند مطالبه وکړه. یواځې دا نه بلکې چا دا سوال هم ونه کړه چې دَ دې شعر مطلب څه دے؟

تر اوسه پورې زمونږ محققینو دا راز ښکاره نه کړے شه چې دَ اکبر زمینداوری مونډلے شوے کلام له کومې ذریعې نه دَ دوی لاس

ته راغلے دے بلکې "پښتانه شعراء" او "فرهنګ زبان و ادبیات پښتو" کښې چې کوم بیان په دې سلسله کښې شوے دے هغه خو دا څرګندوی چې دَ اکبر زمینداوری دا کلام چا فرد واحد یا ادارې سره موجود نه دے. دَ "پښتانه شعراء" بیان دا دے:

" دَ پښتو ژبې په پخوانیو او نوم ورکو شاعرانو کښې یو اکبر دے چې کلام ئې ورک او چا نه دے لیدلے.،، (ص ٦٥) "فقط یو څو زړې پاڼې دَ ده له نادر او ورکه دیوانه دَ قندهار دَ هلمند په لتو کښې لیدلی شوی او له هغو څخه لاندې معلومات په لاس راغلی دی." (هم دغه مخ)

دَ ښاغلی زلمی هیوادمل "فرهنګ زبان و ادبیات پښتو" بیان دا دے :

"برګے چندے از دیوان بیش بهائے وے در دست محققین و دانشمندان ادب پښتو افتید. (د هغه دَ قیمتی دیوان څو پاڼې دَ پښتو ادب دَ محققینو او دانشمندانو په ګُتو ورغلې. (ص ٦٥)

له دې دواړو بیانونو نه دا نتیجې راوځی:

ا : د اکبر کلام ورک او چا نه دے لیدلے.

ب : د اکبر دَ دیوان یو څو زړې پاڼې دَ قندهار دَ هلمند په لتو کښې لیدلی شوی دی.

ج : د اکبر دَ دیوان څو پاڼې دَ پښتنو محققینو او دانشمندانو په لاس ورغلی دی.

د : "د پښتانه شعراء" مصنف ته حاصل ټول معلومات په دغو زړو پاڼو مبنی دی.

اوس به په دېو څلورو نکتو لږ مفصل بحث وکړو.

ا : که دَ "پښتانه شعراء" دا دعویٰ صحیح وی چې دَ اکبر زمینداوری دیوان ورک او هیچا هم نه دے لیدلے نو بیا دا څو پاڼې چې لیدلې شوی دی دوی ته په کوم سند دَ اکبر زمینداوری دَ دیوان حصه وئیلے کیږی. دَ موندلې شوی کلام صرف په دوه غزلونو کښې دَ "اکبر" نوم په مقطعو کښې استعمال شوے دے او دَ هغه په مثنوی او بدله کښې تخلص نه دے پکارولے شوے. نو صرف دوه ځایه کښې دَ "اکبر" دَ تخلص په راتللو تر دې نتیجې پورې رسېدل چې دا لیکونکے اکبر زمینداوری دے ډیر غیر محتاط عمل دے. خاص طور سره په داسې صورت کښې چې دَ ښاغلی زلمی هېوادمل په فرهنګ کښې دَ اکبر زمینداوری نه علاوه دَ پینځو نورو "اکبرانو" ذکر هم شوے دے. دا څو پاڼې اکبر زمینداوری ته منسوبول دَ تاریخ لیکلو دَ اصولو سره مناسبت نه لری. ځکه چې سوال به دا پیدا کیږی چې دا خبره له کومه ثابته شوه چې دا پیدا شوې پاڼې دَ دغو پینځو اکبرانو کښې دَ یو نه بلکې شپږم اکبر دی. که دا ووئیلے شی چې دَ موندلیو شویو پاڼو یو شعر:

د مغلو تېمر هسې په اور وسوم

چې به هېر په دا ماتم زمینداور کړم

په دې دلالت کوی چې لیکونکے ئې دَ زمینداور دے نو زه به ډیر په ادب سره دا ووایم چې له دې شعره دا نه ثابتیږی چې لیکونکے دَ زمینداور اوسیدونکے دے (لکه چې مخکښې به تفصیل سره عرض کړے شی) نو ځکه دَ دې دعوې دپاره به څه زیات قوی دلیل پکار وی

چې هغه چا سره نشته لکه چې پخپله حبيبي صاحب فرمائيلي دي چې دَ دوی ټول معلومات تر هغو پاڼو پورې محدود دي چې دوی ئې اکبر ته منسوبوی او دغو پاڼو کښې دا تفصيل نشته.

ب : دَ دې نکتې په باره کښې دا ياد ساتل پکار دی چې دَ يو تاريخي دعوې بنياد په مجهول بيان اېښول ډېر غير محتاط عمل دے. دا وېنا چې "دَ اکبر دَ ديوان يو څو زړې پاڼې دَ قندهار دَ هلمند په لتو کښې ليدلي شوی دی" دَ ګرامر له لحاظه يوه مجهوله فقره ده چې فاعل ئې معلومه نه دے. "ليدلي شوی دی" يوه معنیٰ لری او "ما يا بل چا ليدلي دی" بالکل جدا معنیٰ لری. په "پښتانه شعراء" لومړی ټوک کښې چې حبيبي مرحوم دا دعویٰ کوی چې دَ اکبر دَ ديوان يو څو زړې پاڼې دَ قندهار دَ هلمند په لتو کښې ليدلي شوی دی نو په دې بيان دا اعتراضات واردېږی:

۱. حبيبي مرحوم دَ قندهار دَ هلمند دَ علاقې دَ هغه مخصوص کلي يا ځائې نوم ولې په ګوته کړے نه دے چرته چې دا پاڼې "ليدلي شوی" دی.

۲. حبيبي مرحوم دَ هغه فرد نوم ولې نه ظاهروی چا سره چې دا "زړې پاڼې ليدلي شوی" دی.

۳. حبيبي مرحوم دَ موندليو شويو پاڼو دَ شمېر ذکر ولې نه کوی؟ دا تفصيل ځکه ضروری دے چې سبا له هر يو جعلساز دېو پاڼو کښې اضافه کولے شی او دَ حبيبي مرحوم په روايت به خپلې دعوې له تقويت ورکولے شی.

٤. او وروستے اعتراض دا چې کهٔ دَ سلېمان ماکو تذکرة الاولياء

فېک سېمیلي "پښتانه شعراء لومړی ټوک" کښي شاملول ضروري ګڼلي شو نو دَ اکبر دَ دیوان دَ زړو پاڼو تصویر ولې اهم ونه ګڼلے شه او تر اوسه پورې ورلره دا اهمیت نه شي ورکېدے چې "پښتانه شعراء" دَ خپل ادبي تاریخ په سلسله کښي یو قوي دلیل بیاموږ.

ج: هم دغه خبره دَ "ج" په ضمن کښي هم کېدے شي. ښاغلی زلمی هېوادمل خپل کتاب "فرهنګ زبان و ادبیات پښتو" په ۱۳۵۶هش (۱۹۷۷ء) کښي چاپ کړے دے. تر دغه وخته دَ اکبر زمینداوري دَ دیوان دَ څو پاڼو په باره کښي باوري اطلاع چاته نه وه حاصله چې دا پاڼې چرته دي. ښاغلی هېوادمل دَ پښتو ادب محققین او دانشمندان یادوي خو نوم ئې نه اخلي حالانکې ۱۹۷۷ء پورې دَ افغانستان اکثر اکابر او اعاظم ژوندي وو او اوس خو دَ ثور دَ انقلاب او له هغه پسه حالاتو په وجه دَ ملي ارشیف (ارکائیوز) دَ محفوظ پاتې کېدو ضمانت هم نشته نو څوک به څه ووائي چې دغه پاڼې څه شوې او اوس چرته دي خو که دا پاڼې پیدا هم شي نو دا سوال پخپل ځائې پاتې کیږي چې له ۱۳۲۰هش (۱۹٤۱ء) نه تر اوسه دَ دېو زړو پاڼو دَ موجودګۍ تفصیلات لکه دَ یو مقدس راز ولې مخفي ساتلي شوي دي.

دَ "د" دَ نکتې مطلب دا دے چې لکه څنګه چې دَ ښاغلي حبیبي مرحوم وینا رانقل شوه دَ اکبر زمینداوري په باره کښي دَ "پښتانه شعراء لومړی ټوک" ټول تفصیلات په هغو څو پاڼو مبني دي چې دَ قندهار دَ هلمند په لتو کښي لیدلې شوي دي. دَ تاریخي نقطهٔ نظره دا صحیح خبره نه ده چې په لږو معلوماتو دې اکتفا وکړے شي

او دَ معلوماتو دَ تصدیق او تائید دپاره دې بله ذریعه اختیار نـه کړے شي. بې داسې صورت کښې دَ تېروتلو او تېراېستلو دپاره کافي مواقع دي. خکه لویو لیکونکیو تل له داسې منابعو ځنې ځان ژغـورلے دے چې بلې کومې ازادې ذریعې نه ئې تصدیق یا تائید نه شي کېدے او دَ داسې کولو لوئې سبب دا وی چې یو کس پورې محدود معلوماتَ دَ دغه کس ذاتي رائې کېدے شي او داسې رائې ته تاریخی حقیقت وئیل ناممکن شي ځکه خو دَ تاریخ علماء خپله ادعا صرف په یو تاریخ نه ثابتوی بلکې په مختلفو ادوارو کښې دَ لیکلو شویو مختلفو تاریخونو نه استفاده کـوی او دَ تـاسف خبـره دا ده چې دَ اکبـر زمینـداوری پـه سلسله کښې دا اصولی خبره دَ نظر لاندې نه ده ساتلې شوې او دَ اکبر زمینداوری ټول حالات دَ څو پاڼو نه نه بلکې له یوه شعره اخذ شوی او اولس ته پېش کړے شوی دی.

دا شعر لکه چې مخکښې هم نقل شه داسې دے:

د مغلو تېمر هسې په اور وسوم

چې به هېر په دا ماتم زمینداور کړم

دَ دې شعر په باره کښې تر اوسه چا دَ غور کولو کوشش نـه دے کړے چې دَ شعر په اصل معنیٰ او له دې اخذ کېدونکې معنـیٰ کښـې څـه فرق دے. حبیبی مرحوم او دَ پښتو نور لیکونکی دَ دې شعر پـه بـاره کښې دا تاثر ورکوی لکه چې اکبر زمینداوری باندې دَ مغلو لـه لاسـه ډېر ظلمونه شوی وی او دې شعر کښې دَ هغو ظلمونو ماتم شوے دے. دا معنیٰ له دې شعره نه شي راوتلے. دَ شعـر (لکـه ځنګـه چـې دے) معنیٰ دا ده. "دَ مغلو تېمر داسې په اور سوزولے یم چې دَ دې ظلم پـه

وجه (دَ) زمينداور (ظلم) هېر کړم." يعنې شاعر دا وائی چې په ما شوے ظلم دَ زمينداور دَ ظلم نه زيات دے. په يو څيز بل څيز هېرول دَ دواړو څيزونو ترمنځه دَ مقابلې دپاره زمونږ دَ ژبې محاوره ده او روڼ مثال ئې دَ احمد شاه بابا په دې شعر کښې موندلے شی.

د ډيلی تخت هېرومه چې راياد کړم

زما دَ ښکلی پښتونخوا دَ غرو سرونه

دَ احمد شاه بابا په دې شعر کښې دَ ډيلی دَ تخت او دَ پښتونخوا دَ غرو دَ سرونو مقابله کړې شوې ده او احمد شاه بابا دا فېصله ورکړې ده چې دَ هغه دپاره دَ پښتونخوا دَ غرونو دَ سرونو مقابله کښې دَ ډيلی تخت دَ هېرولو څيز دے. دغسې دَ بحث لاندې شعر کښې هم دَ شاعر مطلب دا دے چې په هغه باندې دَ مغلو تېمر له خوا دَ شويو ظلمونو مقابله کښې په زمينداور شوی ظلمونه دَ هېرولو څيز دے. اوس چونکې زمونږ په تاريخ کښې په زمينداور دَ شويو ظلمونو هيڅ ذکر نشته ځکه نو دا شعر څه اصليت نه ښکاره کوی.

که دَ شعر دوېمه مصرع نظر انداز کړو نو وړومبۍ مصرعې نه دا ښکاری چې دَ شاعر او دَ "مغلو دَ تېمر" خپلو کښې براه راست دښمنی او عداوت وه او دَ دې دَ ثابتولو دپاره به يو ځل بيا دَ تاريخ پاڼې اړوو چې آيا دَ تېمور لنګ او دَ يو پښتون شاعر ترمنځه څه ذاتی عداوت وه؟ او متاسفانه يو ځل بيا تاريخ زمونږ دَ مفروضې ترديد کوی. د دوېمې مصرعې دَ نظر انداز کولو په صورت کښې دَ وړومبۍ مصرعې بهتر شکل دا وه:

د تېمر مغلو هسې په اور وسوم

دا صورت ئې څکه هم غوره دے چې دَ تېمور دَ ذاتي دښمنۍ نه به دَ شعر اشاره دَ مغلو او پښتنو ترمنځه رقابت ته لاړه شي او هر څو که دوېمه مصرعه به دَ "پښتانه شعراء لومړی ټوک" اخذ کړے مطلب ورکړي خو بيا هم دَ وړومبۍ مصرعې به څه معنیٰ خو پيدا شي.

دَ دې شعر په ضمن کښې له ټولو نه اهمه خبره دا ده چې دَ "پښتانه شعراء لومړی ټوک" ليکونکی دا شعر لرونکے غزل دَ اکبر زميندارو دَ کلام دَ نمونې په طور نقل ولې نه کړه او تر اوسه دَ اکبر زميندارو دغه غزل دَ اکبر زميندارو په سلسله کښې دَ بحث په دوران کښې ولې پيش نه کړے شه. دَ افغانستان ليکونکيو سره دَ دې چې هغوی ته دَ اکبر زميندارو دَ ديوان دَ دغو "څو زړو پاڼو" دَ کتلو بهتره موقع وه دَ دې شعر سره په غزل کښې شامل بل کوم شعر ولې چاپ نه کړے شه. او ولې ئې صرف په دې يو شعر اکتفا وکړه. حالانکې دا "څو پاڼې" ټولې چاپ کول دَ پښتو ادب په مفادو کښې وو. حبيبي مرحوم په "پښتانه شعراء لومړی ټوک" کښې دَ اکبر زميندارو اته څلوېښت (۴۸) شعرونه رانقل کړی دی. ديو کښې پينځه شعرونه دَ يو غزل او اووه دَ بل غزل دی. دَ :

چې به هېر په دا ماتم زميندار کړم

غزل که پوره رانقل شوے وے نو زيات نه زيات به ۵۵ شعرونه شوی وو چې دَ موضوع له اعتباره ئې ډېر اهميت لرلو خو افسوس چې داسې ونه کړے شو او اوس دَ هر باشعوره قاري به هم دا اعتراض مخې له راځي چې دَ اکبر زميندارو غېر اهم غزلونه رانقل کېده نو دا دومره اهم غزل ولې نظر انداز کړے شه.

دَ اکبر زمینداورې سره منسوبه مثنوۍ کښې یو شعر دا هم دے:

کۀ نژدې کۀ پۀ هواد یم
زۀ دَ دۀ پۀ خیال و یاد یم

دَ دې شعر مقابله دَ عبدالقادر خان ختک دَ یوسف زلیخا دې شعر سره وکړئ:

کۀ نژدې کۀ پۀ هواد دی
کۀ پۀ زړۀ لکه فولاد دی

دَ دواړو شاعرانو تر منځه دَ دریو صدیو دَ فرق باوجود دَ دواړو دَ شعرونو صرف مزکه او وزن یو نۀ دے بلکې دَ وړومبۍ مصرعې الفاظ ئې هم یو دی. دَ حسن توارد یا سرقه خبره به یو خوا پرېږدو. آیا پۀ یوه ژبه کښې انداز بیان، اسلوب او بندشونه تر دریو صدیو یو شان پاتې کېدے شی. دا خو عجیبه خبره ده چې دَ روښانیانو شاعرانو ژبه دې دَ اکبر زمینداورې او عبدالقادر خان ختک سره فرق ولرې خو دَ اکبر زمینداورې او عبدالقادر خان ختک ژبه دې یو شان وی. ژبه هم دَ یو ژوندی اندام پۀ شان وده کوی او زړېږی. کۀ دَ اکبر زمینداورې ژبه او دَ عبدالقادر خان ژبه یو شان وی او تر دا منځه ئې دَ روښانیانو ژبه بل شان وی نو دا نتیجه به ترې حاصلېږی چې دَ روښانیانو دور کښې پښتو ژبې زوال موندلے وۀ او سل کاله پس ترې ژبه بیا هغې حال ته واپس شوه کوم چې پۀ نهمه صدۍ کښې دَ دې ژبې وۀ. داسې فکر کول هم غیر سائنسی او غیر تاریخی دی او چونکې دَ اکبر زمینداورې ژبه او طرز دَ عبدالقادر خان ژبې او طرز سره یکسانیت لری نو ځکه

مونږ وئېلې شو چې اکبر زمینداوری دَ تېمور دَ زمانې (٧٧١ـــ٨٠٧) شاعر هیڅ کله نهٔ دے. بلکې دَ عبدالقادر خان خټک او دَ هغهٔ نه پس ته دَ زمانې شاعر دے.

دَ اکبر زمینداوری ذکر په "پښتانهٔ شعراء لومړی ټوک" او ترې پس ته کتابونو کښې دَ اکبر زمینداوری په حېث کول هم دا ښکاره کوی چې دَ اکبر زمینداوری دریافت کونکے دے په دې نامه یادول غواړی ګنی نو له ١٣٢٠هش (١٩٤١ء)نه مخکښې نهٔ چا اکبر زمینداوری پېژندو نهٔ ئې چا نامه اورېدلې وه. او نهٔ چرته دا نوم په تحریری شکل کښې خرګند وهٔ نو بیا بغېر له څهٔ ثبوت او اثباته یو شاعر ته یو نوم ورکول (چې هغهٔ خان ته پخپله هم نهٔ دے اخستے) څهٔ معنیٰ لری.

او له ټولو وروستی خبره دا چې دَ زمینداور دا اکبر چې دَ "محمد هوتک" وطندار او له هغهٔ درې صدئ مخکښې تېر شوے وهٔ. دَ محمد هوتک دَ ادبی سفرونو، دَ هغهٔ دَ پلار دَ حافظې او دَ محمد رسول هوتک او رحمت هوتک دَ بیاضونو باوجود دَ پټې خزانې له صفحاتو بهر پاتې شهٔ او دیو ټولو څنګه او ولې نظر انداز کړهٔ.؟

## کتابیات


١. پښتانهٔ شعراء لومړے ټوک حبیبی. کابل

٢. تذکرة الشعراء سراج الدین سعید او صالح محمد هوتک. کابل

۳. فرهنګ زبان و ادبیات پښتو. زلمے هیوادمل. کابل

٤. یوسف زلیخا. دَ عبدالقادر خاِن ختټک. کرسټومیتھی. سینټ پیټرز برګ

۵. دیوان احمد شاه ابدالی. پښتو اکیډیمی. پیښور

٦. پټه خزانه. محمد هوتک . کابل

(درې میاشتنی کتابی سلسله مرکه مردان ۲۲ جون ۱۹۹۲ء)

# دَ رحمان بابا دَ پېدائش
# او وفات کلونه

دَ پښتو دَ ادبی تاریخ یوه لویه مسئله زمونږ دَ لویو لیکونکیو دَ ژوند په باره کښې دَ معلوماتو کمی سره تعلق لری. رحمان بابا زمونږ دَ ادب یو ډېر روښانه ستورے دے او له بده مرغه له ټولو نه زیاته تیاره هم دَ دې روښانه ستوری دَ ژوند په واقعاتو خوره ده او په قطعیت سره مونږ دَ رحمان بابا دَ پېدائش او دَ وفات دَ کلونو په باره کښې هم دعویٰ نه شو کولے.

په شلمه صدی عیسوی (څوارلسمې صدی هجری) کښې دَ نورو تاریخی معلوماتو دَ لټون دپاره دَ هلو ځلو په لړ کښې دَ رحمان بابا دَ پېدائش او وفات دَ کلونو په باره کښې هم دَ خیال انګېزیو یو مهم شروع شه او دَ دې مهم په دوران کښې په ورومبی ځل دا ووئېلے شو چې دَ رحمان بابا دَ ژوند زمانه له ۱۰۵۰ هجری تر ۱۱۲۰ هجری پورې تخمین کولے شو. (۱) دَ وفات دَ کال یعنې ۱۱۲۰ هجری دپاره خو دَ تخمین بنیاد دَ بهادر شاه په باره کښې دَ رحمان بابا شعر ګڼلے شوے دے (۲) ولې دَ پېدائش په باره کښې ئې هیڅ بنیاد نه دے ښئیلے شوے.

"پټه خزانه" (مطبوعه ۱۳۲۳ هش مطابق ۱۹٤٤ ء) دَ رحمان بابا دَ پېدائش کال ۱۰٤۸ او دَ وفات کال ئې ۱۱۱۸ھ ښئ. دا دواړه تاریخه دَ "محمد رسول هوتک علیه الرحمة" دَ بیاض په بنیاد

بیانوی خو دَ "محمد رسول هوتک علیه الرحمة" په باره کښې هیڅ معلومات نه ورکوی ځکه نو مونږ دا نه شو وئیلے چې دَ "محمد هوتک" دا سند باوری هم دے او که نه.

دلته دا خبره دَ یادولو ده چې "دَ رحمان بابا دَ زیږیدو او مړینې کلونه" (۳) نومې مقاله "محمد رسول هوتک علیه الرحمة" په ۱۱۳۰ هجری کښې پېښور ته رسوی، "یونس خېبری" سره ئې ملاقی کوی او وائی چې هغه له دې ځایه قندهار ته دَ رحمان بابا په حقله کره او پاخه معلومات له ځان سره وړی دی او داسې دعویٰ کوی چې په "دې دلیل دا سند ډېر پخیږی" حالانکې دا ټوله خبره محض افسانه ده. "پټه خزانه" چې کوم سړے "یونس خېبری" ته رسوی دَ هغه نوم محمد رسول کلاتوال نه بلکې دَ "محمد هوتک" دَ وینا مطابق دَ هغه تربور "رحمت هوتک" دے. (٤) او دې ښاغلی یعنې "رحمت هوتک" دَ "پټې خزانې" مؤلف ته دَ رحمان بابا په باره کښې له دې نه بغېر نور هیڅ معلومات نه دی ورکړی چې یونس دَ رحمان بابا شاګرد وه. ځکه نو دَ مقالې دا "باوری سند" هیڅ بنیاد نه لری.

دَ رحمان بابا دَ پیدائش دَ کال په باره کښې دَ پټې خزانې دَ روایت دَ عمارت دَ پرېوتو نه پس اوس مونږ سره دَ رحمان بابا دَ کلام دَ داخلی شهادت نه بغېر نور هیڅ باوری سند نه پاتې کیږی. دې داخلی شهادت ته دَ دغه مقالې په ص ۵٦ اشاره شوې ده. خو ډېر اهمیت نه دے ورکړے شوے. حالانکې که چرې دَ داخلی شهادت ذکر کیږی نو صرف هم دغه یو داخلی شهادت داسې دے چې اهمیت ورکول پکار دی او اګر چې دا "داخلی شهادت" قطعی او حتمی دلیل نه شو ګڼلے

خو صرف نظر ترې هم ممکن نه دے.

دَ اورنګ زېب دَ وفات او دَ بهادر شاه دَ باچايۍ ذکر لرونکې قصيده کښې دا شعر:

تر پنجاه تر پنجه تېر شوې

ته لا ځان بولې پسر

موجود دے او صرف يوه نسخه کښې چې صرف دَ بحث لاندې مقاله کښې ئې ذکر شوے دے (خو تفصيل ئې نه دے بيان شوے) دا شعر داسې دے:

تر پنجاه و شصته تېر شوې

ته لا ځان بـولې پسر

او دَ دې يوې نسخې په بنياد دا دعوىٰ شوې ده چې "دا بيت په بېلابېلو نسخو کښې ثابت نه دے او بېلابېل واريانتونه (شايد ويرينټونه يعنې مختلف قراتونه. ناقل) او نسخه بدلونه لرى" (٥) حالانکې دَ رحمان بابا ټولو قلمى نسخو کښې چې ما دَ کليات دپاره کتلې دى دا شعر داسې دے:

تر پنجاه تر پنجه تېر شوې

تـه لا ځـان بولې پسر

دَ دې شعر په باره کښې عام طور سره دا خيال کيږى چې دا رحمان بابا په ۱۱۱۹هجرى کښې ليکلے وه حالانکې دَ داسې خيال دپاره هيڅ قرينه نشته. مونږ صرف دا وئيلے شو چې دا شعر دَ ۱۱۱۹ھ نه پس ليکلے شوے دے. ولې که په ۱۱۱۹ھ کښې مونږ دَ رحمان بابا عمر ۵۵ کاله فرض کړو نو دَ رحمان بابا دَ پېدائش کال ۱۰۶٤ھ راوځى او

که داسې وی نو دَ خوشحال بابا دَ وفات په وخت په ۱۱۰۰ھ کښې به دَ رحمان بابا عمر ۳۶ کاله منل پکار وی. ولې داسې کول به ډېر غلط وی ځکه چې که چرې دَ خوشحال بابا دَ مرګ په کال رحمان بابا دَ ۳۶ کالو وے نو دا به ډېره غېر اغلبه خبره وه چې خوشحال بابا به ئې دَ شاعر په حېثيت ذکر نه کولو.

دَ خوشحال بابا په کليات کښې دا قطعه موجوده ده:

(هر) چې لاف وهی دَ شعر
نن په دا دور دی ډېر
خدائې دې نه کا چې به وايم
حـال دَ دېو تـېر و بـېر
څوک پاوے څوک نيم پاوے دے
قـلندر په کښې نيم سـېر
(چې) زمونږه په حساب دے
هيڅ مې نه دے واصل هـېر
بل دولت فقير درې پاوه
زه ترې څو سرشاهی تېر
چې به سرائې کښې به پيدا شی
پس له قــرنه پــوره سېر (٦)

دې قطعه کښې دَ ذکر شوېو ټولو شاعرانو نه رحمان بابا دَ شاعر په حېثيت ډېر عظيم دے او دَ خوشحال بابا غُندې نقاد نه هغو دا امېد نه شی کېدے چې هغه به دومره عظيم شاعر نظر انداز کړے وی او که څوک دا وائی چې دَ دې قطعې ليکلو په وخت کښې خوشحال بابا ته دَ

رحمان بابا کلام نه وه رسېدلے ځکه ئې هغه ذکر نه دے کړے نو دا وضاحت به ځکه غلط وی چې له دې قطعي نه بغېر هم خوشحال بابا څو څو ځل دَ نورو شاعرانو ذکر کړے دے ځکه نو دَ عمر په هره حصه کښې که دَ خوشحال بابا غُندې عظيم نقاد ته دَ رحمان بابا غُندې دَ عظيم شاعر کلام رسېدلے وے نو هغه به ئې خامخا ذکر کونو او چې خوشحال بابا دَ رحمان بابا ذکر نه دے کړے نو څرګنده خبره ده چې دَ خوشحال بابا د مرګ کال يعنې ۱۱۰۰ھ پورې دَ رحمان بابا عمر هيچرې ۳٦ کاله نه وه ځکه چې په دومره عمر کښې به دَ هغه کلام دَ معيار او مقدار له رويه دومره وه چې دَ خوشحال بابا توجه به ئې ځان نه راګرځوله.

يوه بله خبره هم دې ضمن کښې نظر انداز کول نه دی پکار. دَ خوشحال بابا مشر زوی اشرف خان هجری په ۱۰۹۲ھ کښې ګرفتار شوے او هندوستان ته استولے شوے وه چې بيا هم هلته په ۱۱۰٦ھ کښې وفات شه. ده لکه چې مخکښې به ئې ذکر وشی، په خپله قصيده کښې دَ رحمان بابا ذکر کړے دے. ظاهره ده چې که تر ۱۰۹۲ھ ده دَ رحمان بابا کلام لُستے وے نو دَ خوشحال بابا په باره کښې هم دا امېد کېدے شه چې هغه به هم لُستے وه. خو هرکله چې دَ خوشحال بابا په کلام کښې دَ رحمان بابا ذکر نشته نو لکه چې عرض وشه تر ۱۱۰۰ھ پورې دَ رحمان بابا خپل عمر او دَ هغه شاعرانه ژوند دومره نه وه چې "پښتونخواګير" شهرت ئې حاصل کړے وے او څرګنده شوه چې اشرف خان ته دَ هغه دَ شاعرئ علم دَ ۱۱۰۰ھ نه تر ۱۱۰٦ھ پورې دور کښې شوے دے.

اشرف خان هجري په خپل ديوان کښې دَ رحمان بابا ذکر داسې کوی:

دَ رحمان په وئيل ځائې دَ لقب نشته

چې ئې ما شعر منظور کړه معتبر دے (۷)

عام طور سره زمونږ نقادانو دَ دې شعر نه مخکښې دا شعر هم:

خوږ زبان په زمانې شکرې لونی

هغه واف چې مستقر ئې پېښور دے

دَ رحمان بابا په باره کښې ګڼلے دے حالانکې دا شعر دَ قلندر په باره کښې دے. دَ خپلې خبرې دَ ثابتولو په غرض زه دَ دې نظم متعلقه شعرونه لاندې ليکم:

شاعران دَ پښتنو ګويا څېره دی

د مرزا شعر شمله بلکې افسر دے

تکلف په دا کښې نشته باور وکړه

په دا فن ئې ګوئې وړے له يو هر دے

نن په دا دور کښې ښه شاعران ګورې

که دوه درې تنه دګر يو قلندر دے

خوږ زبان په زمانې شکرې لونی

هغه واف چې مستقر ئې پېښور دے

دَ رحمان په وئيل ځائې دَ لقب نشته

چې ئې ما شعر منظور کړه معتبر دے (۸)

تاسو وکتل چې دَ هر شاعر دَ ذکر نه پس ته شعر دَ هغه په تعريف کښې ليکلے شوے دے ځکه نو دَ قلندر دَ ذکر نه پس دَ:

خوږ ژبان په زماني شکرې لوني
هغه واف چې مستقر ئې پېښور دے

شعر دَ قلندر په باره کښې دے او زمونږ محترم نقادان دَ دې شعر په باره کښې دَ غلط فهمۍ ښکار شوی دی. ما چې په کوم شکل کښې دا شعر رانقل کړه دا دَ قلمی نسخې نه زما قرأت دے که دَ چاپی نسخې قرأت پسې لاړ شو او شعر داسې ولولو:

خوږ ژبان ئې په زمان شکرې لوني
هغه واف چې مستقر ئې پېښور دے

نو بیا تر یوه حده هډو دَ نور بحث سوال نه پېدا کیږی او ورومبی مصرعه کښې دَ "ئې" ضمیر غائب به خامخا قلندر ته راجح کیږی ځکه چې لا دَ رحمان بابا ذکر نه دے شوے او "اضمار قبل الذکر" یراځې عربی کښې نه بلکې هره ژبه کښې غلط دے ځکه زما په یقین دَ چاپی نسخې قرأت څه بنیاد نه لری.

یوه بله خبره هم دې سلسله کښې ډېر اهمیت لری. اشرف خان هجری دَ رحمان بابا دَ شعر دَ معتبر کېدو ثبوت دا بیانوی چې ده یعنې اشرف خان هجری ئې شعر منظور کړے دے که دا ثبوت څوک ومنی نو بیا:

خوږ ژبان په زماني شکرې لوني
هغه واف چې مستقر ئې پېښور دے

به خامخا دَ رحمان بابا دپاره نه بلکې دَ قلندر دپاره ګڼی ځکه چې دا شعر تېرله زمانه دَ شاعر دَ شېرین ژبانی قائله ګڼی او دې پسې شعر کښې هجری صرف دَ خپل تنقیدی شعور په بنا دَ رحمان بابا شعر

قابل اعتبار منی.

زما دا توجیه په دې لحاظ هم صحیح ده چې اشرف خان هجری ته تر خپله مرګه یعنې ۱۱۰۶ھ پورې د رحمان بابا ټوله شاعري نه وه رسېدلې. کم از کم دا شعرونه:

په خوشحال يو کم سل خټک نور په طبیعت کښې

ځـــار شـــه د رحـــمان سړبنی له يـــوه فرده

دا غزل په جاشیه وکښه رحمانه

د خوشحال د بیاض پاڼې به ورېړدی

که ئې شعر د رحمان مومند تر غوږ شی

غوږ به نه باسی په شعر د خوشحال څوک

خوشحالا او دولتا مې غلامان دی

زه رحمان په پښتو ژبه عالمګیر یم

خو په هیڅ صورت اشرف خان هجری ته نه وو رسیدلی. دا زه ځکه وایم چې د اشرف خان هجری په دیوان کښې د قلندر مومند یو غزل راغلے دے چې ځنې شعرونه ئې دا دی:

نوے طرز مې په پښتو ژبه کښې وکړه

د افغان په شاعرانو کښې سلطان یم

په پښتو کښې چې څوک دم وهی د شعر

خوشه چین مې دی د ځبلمې زه دهقان یم

وَ پښتو ژبې مې آب ورکړه په شعر

د فارسی شعر چې نه وایم افغان یم

د دې غزل په ځواب کښې اشرف خان هجری یوه "قصیده" لیکلې ده

چې دا شعرونه ئې دَ غور قابل دی:

دا مهینه قصیده چې مې انشا کړه
عجب کړے په اشعار قلندر خان یم
ما ئې شعر هسې ډک له فخره ولید
چې حېران ئې دَ شاعر په دا ګُمان یم
هومره کبر بډائی کا په خپل شعر
وائې شه په دا هنر دَ شاعران یم
دَ پښتو ژبه مې نوې کړه په نظم
دَ مغل په شعر هم عالی مکان یم
خوشه چین دَ پښتو ژبې شاعران دی
زه دهقان دَ بلاغت فیض رسان یم
چې عطا دَ وېرو کا دانه ئې نه وی
خندا وړے په عطا دَ دې دهقان یم
دَ پښتو شعر ئې سم له ډېرو نه دے
دَ مغل دَ شعر لاف وهی حېران یم
شاه دَ شعر په پښتو ژبه هغه دے
چې ئې زه حلقه بګوش دَ شاګردان یم (۹)

نو که دَ رحمان بابا دا ذکر شوی شعرونه اشرف خان هجری لُستی وے نو دا شعرونه به هم ترې بې ځوابه نه وو پاتې شوی. په دې دلیل مونږ دا وئیلے شو چې دَ اشرف خان هجری تر مرګه (۱۱۰٦ھ) پورې دَ رحمان بابا شاعرانه عمر دومره نه وه چې مونږ ئې دَ ۱۰٦٤ھ کال دَ پیدائش کال وګڼو. تر ۱۱۰٦ھ پورې که مونږ ډېر فیاضانه قیاس هم

وکړو نو دَ رحمان بابا عمر به ۲۵ کاله وګڼو او په دې حساب به دَ هغه دَ پېدائش کال ۱۰۸۱ھ نه مخکښې هیڅ کله نه وي.

دَ رحمان بابا دَ وفات دَ کال په باره کښې هم دَ هغه دَ پېدائش دَ کال په شان اختلافات دي.

"پټه خزانه" دَ رحمان بابا دَ وفات کال ۱۱۱۸ھ بیانوي او دَ افغانستان اوسني لیکونکي وائي چې دا دَ کاتب تېروتنه ده چې دَ ۱۱۲۸ھ په ځائې ئې ۱۱۱۸ھ لیکلے دے. او دا تېروتنه دَ دستاوېز دَ اخرني کاتب "محمد عباس کاسي" دَ "باستعجال تمام قلمي شد" (په ډېره بیړه ولیکلے شه) په الفاظو دَ درګزر قابله ګڼي.

زما محترم لُستونکي له هغې رائې واقف دي چې زه ئې دَ پټې خزانې په باره کښې لرم. ځکه دلته ئې تکرار نه کوم البته دومره عرض به ضرور وکړم چې "باستعجال تمام قلمي شد" عذر دَ رحمان بابا دَ وفات دَ کال په سلسله کښې قابل سماعت نه دے ځکه چې که "محمد عباس" دَ بیړې په وجه دَ ۱۱۲۸ھ په ځائې ۱۱۱۸ھ ولیکلو نو دَ پټې خزانې دَ محشي او مفسر نباغلي عبدالحئ حبیبي مرحوم له نظره دا غلطي ولې پټه پاتې شوه او هغوی په دې کتاب دَ مفصلو نوټونو لیکلو په وخت کښې دې غلطۍ ته ولې اشاره ونه کړه.

که څوک دا ووائي چې نباغلي حبیبي مرحوم ته دا علم نه وه چې دَ رحمان بابا دَ وفات اصل کال کوم یو دے ځکه هغوی په پټو سترګو دَ "محمد هوتک" یا دَ "محمد عباس" لیکلے کال (۱۱۱۸ھ) صحیح وګڼلو نو دا به صحیح نه وي ځکه چې له پټې خزانې نه اګاهو عبدالحئ حبیبي مرحوم "پښتانه شعراء لومړے ټوک" مرتب کړے وه

او دي کتاب کښې (له غلطۍ څنې) بناغلی عبدالحئ حبيبی مرحوم دَ بهادر شاه اول دَ تخت نشينۍ کال ۱۱۱۸ھ ليکلے دے. او دا ئې وئيلی دي چې "دَ رحمان بابا ژوند دَ دۀ له وينا څخه (سم) دَ شاه عالم تر جلوسه (۱۱۱۸ھ) يقينی دے.(۱۰) دا په مياشتو کښې دننه دَ ۱۱۱۸ هندسه دَ حبيبی مرحوم خپل ليک دے.

دا غلط فهمی بناغلی حبيبی مرحوم ته څکه شوې وه چې دَ مغلو په خاندان کښې چې يو بادشاه کله مړ يا له تخته محروم شوے دے نو بغير له څۀ فصله بل بادشاه ورپسې په تخت ناست دے لکه چې له دې نقشې به ثابته شی:

بابر : ۹۳۲ـــ۹۳۷

همايون : ۹۳۷ـــ۹۶۳ھ (۹٤۷ ھ نه ۹۶۱ھ پورې همايون له تخته محروم وه.)

اکبر : ۹۶۳ـــ ۱۰۱٤ھ

جهانګير : ۱۰۱٤ـــ ۱۰۳۷ھ

شاهجهان : ۱۰۳۷ـــ ۱۰۶۸ ھ (معزول)

اورنګ زيب : ۱۰۶۸ـــ ۱۱۱۸ھ (۱۱)

له بده مرغه دَ اورنګ زيب په سلسله کښې دا روايت څکه قائم پاتې نۀ شو چې دَ دۀ وفات دَ ذوالقعده ۱۱۱۸ھ په ۲۸ په احمد نګر (دکن) کښې وشو او چې دَ کابل صوبې ته، چې هغه وخت شاه عالم ئې صوبه دار وه دَ بادشاه دَ وفات خبر رارسېدو نو دا دَ لوئی اختر دَ مياشت۲۷ تاريخ وه چې دوه يا درې ورځې په ۱۱۱۸ھ کښې پاتې وې. تاريخ کښې دا هيچرته نشته چې دَ پلار دَ مرګ دَ خبر

رارسېدو سره شاه عالم دَ خپل بادشاهت اعلان کړے وه او اګر چې دَ مشر زوی په حېثيت حق هم دَ هغه وه خو دے چې له پښتونخوا روانېده نو دَ بادشاه په حېثيت نه بلکې دَ بادشاهۍ دَ اميدوار په حېثيت ئې سفر اختيار کړه او هم دغه وجه ده چې ده دَ خپلې بادشاهۍ اعلان په لاهور کښې دَ ۱۱۱۹ه په ۳۰ محرم يا يکم صفر وکړه او هر کله چې ښاغلی حبيبی مرحوم دَ غلط فهمۍ په بنا دَ شاه عالم بهادر شاه دَ جلوس کال ۱۱۱۸ه وګڼلو نو ځکه ئې دَ رحمان بابا ژوند تر ۱۱۱۸ه يقيني ومنلو. او هم دغه غلط فهمی "محمد هوتک" ته هم وشوه ځکه نو دا وينا صحيح نه ده چې "پټه خزانه" کښې ليکلے دَ رحمان بابا دَ وفات کال (۱۱۱۸ه) دَ کتابت غلطی ده چې اصل کښې ۱۱۲۸ه وه. دَ دې په مقابله کښې ښاغلی حبيبی مرحوم تر ۱۹۵۳ء پورې په دې اصرار کولو چې دَ ۱۱۱۸ه دا کال صحيح دے.(۱۲) او دَ محمد عباس کاسی دَ "باستعجال تمام قلمی شد" عذر ئې نه پيش کولو او چې دَ ګل خان جمال خان دَ واقعې په باره کښې دَ راورټی نه پس دَ تاريخ مرصع حواله هم ومونداې شوه او دا ثابته شوه چې په ۱۱۲۳ه کښې رحمان بابا ژوندے وه نو دَ افغانستان محترمو ليکونکيو دَ پټې خزانې بيان ته دَ کتابت دَ غلطۍ نوم ورکړو او يوه نوې دعویٰ ئې دا وکړه چې دا کال په اصل کښې ۱۱۲۸ه دے حالانکې دَ کتابت دَ غلطيو سره اګاه خلق دا ګواهي ورکولے شي چې دَ ۱۱۱۸ه کښې دَ "۱" دَ هندسې دَ دريو ځلو دَ راتللو په وجه دَ کتابت غلطۍ امکان نه لری. دا کېدے شي چې دَ ۱۱۱۷، ۱۱۱۶ يا بلې کومې 'داسې هندسې چې درې ځل پکښې "۱" راغلے وی يو تر بله

التباس وشی او دغه هندسي ۱۱۱۸ھ ولیکلے شی خو په موجوده صورت کښې دَ کتابت دَ غلطۍ عذر قابل سماعت نه دے.

دَ "غرځې" دَ رحمان نمبر مقاله کښې دَ رحمان بابا دَ وفات کال کښې دَ کتابت دَ غلطۍ له دغه ذکره پس دَ یونس له دیوانه دَ محترم رشاد صاحب په حواله دَ یونس له یوې مصرعې دَ ۱۱۲۸ھ دَ رحمان بابا دَ وفات دَ کال په حېثیت استخراج شوے دے. دَ دې دعوې دَ یونس له یوې مصرعې:

چې له دې سرایه په نوې سرائې مهمان شه

نه دَ پروفیسر رشاد دَ تحقیق سره سم دَ ابجدی ارزښت له لوریه دَ ۱۱۲۸ھ کال راووځی. دې ضمن کښې داسې حساب شوے دے:

| | | |
|---|---|---|
| (۱) | چې | ۸ |
| (۲) | په | ۷ |
| (۳) | له | ۳۵ |
| (٤) | نوې | ۷٦ |
| (۵) | دې | ۱٤ |
| (٦) | سرائې | ۲۷۱ |
| (۷) | سرایه | ۲۷٦ |
| (۸) | مهمان | ۱۳٦ |
| (۹) | شه | ۳۰۵ |

دَ دې ټولو میزان ۱۱۲۸ھ شوے دے حالانکې دَ صحیح حساب مطابق دَ دې میزان ۱۱۱۸ھ دے ځکه چې دَ شپږم ټکی "ابجدی ارزښتی ۷٦ نه بلکې (ن و ی = ۵۰ + ٦ + ۱۰) ٦٦ دے. له

دې مصرعې نه دَ (۱۱۱۸) اعداد راوکښل هم دَ جديد رسم الخط له رويه ممکن دی ځکه چې دَ يونس په زمانه کښې (بلکې له هغه نه هم ډېر پس) دَ پښتو ليک دود داسې نه وه لکه چې دَ يونس په ديوان کښې يا دَ غړکې په ذکر شوې مقاله کښې استعمال شوے دے.

اول خو دا خبره نظر انداز کول نه دی پکار چې دَ يونس دا "مرثيه" دَ "ش" په پټې کښې ده ځکه نو دَ مصرعې وروستے تورے "شه" نه بلکې "ش" دے. په دې حساب ۵ ترې نور هم کم کړئ يعنې اوس به ئې ميزان ۱۱۱۳ شی. په زړه املا کښې "له"، "سرايه" او "په" کښې "ه" نه شوه ليکلے نو پنځلس ترې نور هم کم کړئ. داسې به دَ مصرعې اعداد ۱۰۹۸ شی او دا به ترې ثابته شی چې رحمان بابا دَ خوشحال بابا نه دوه کاله اګاهو وفات شوے وه.

خبره دلته نه ختميږی دا وېنا هيڅوک هم په يقين نه شی کولے چې دَ مصرعې وړومبے تورے "چه" دے "چې" او که "چ" په دوېم صورت کښې به پينځه ور زيات شی او ۱۱۰۳ه به شی او په درېم صورت کښې به ترې پنځه کم شی او ۱۰۹۳ به شی.

دې ضمن کښې دَ زوړ ليک دود مطابق دَ تاريخ ګويې څو مثالونه پېش کوم چې دا ترې ثابته شی چې متقدمينو دَ خپلې زمانې دَ املا مطابق تاريخونه وکښل او که مونږ دَ کالونو دَ راوکښلو په سلسله کښې دَ "پروفېسر رشاد" طريقه خپله کړو نو دَ زړو ټول تاريخونه به غلط کړو.

(۱) خوشحال خان دَ خپل زوی طاهر خان دَ وفات کال "طاهر ومړ پشباب کښې" نه ۱۰۹۸ ه راوکښلے دے. دا مصرعه که دَ ننني املا

سره سمه ولیکلے شی نو دَ "طاهر ومړ په شباب کښې" په صورت کښې به نې "ابجدی ارزښت" ۱۱۱۳ھ شی او په دې شان به دَ آئنده مؤرخ دا هم ووائی چې خوشحال بابا دَ خپل مرګ نه دیارلس کاله پس هم شاعری کوله.

(۲) خوشحال خان دَ خپلې رهایۍ تاریخ کښې چې دَ سید میر مور ته کوم کنځل کړی دی هغه مصرعه که دَ موجوده املا مطابق ولیکو نو دَ رهایۍ تاریخ به ۱۰۹٦ھ راووځی ځکه چې دَ "پَکوزَ" په ځائې به "په کوزه" او دَ مصرعې اخر کښې به "ی" لیکو.

(۳) حافظ الملک، حافظ رحمت خان په کال ۱۱۸۸ھ کښې شهادت موندلے دے او دَ دوی دَ شهادت کال له "خانا دل راشا" (۱۳) نه ووځی. خو که دا الفاظ په موجوده املا کښې ولیکلے شی نو "خانه دلې راشه" به ترې جوړ شی او دَ حافظ رحمت خان دَ شهادت کال به ۱۲۰٦ھ ته ورسی.

دَ یونس دَ دې مرثیې په باره کښې دا هم یاد ساتل پکار دی چې دَ تاریخ مصرعه (دَ ښاغلی رشاد په خیال کښې) په منځ کښې بغیر دَ څه "اعلانه" راغلې ده چې دَ تاریخ ګویۍ په تاریخ کښې بل مثال نه لری.

اوس نو چې دا تاریخونه (۱۱۱۸ھ او ۱۱۲۸ھ) دواړه غلط شو نو سوال دا پیدا کیږی چې دَ رحمان بابا دَ وفات صحیح تاریخ به څه وی له ښه مرغه دَ رحمان بابا دَ وفات دَ کال په ضمن کښې هم دغسې یو دستاویزی ثبوت شته لکه چې دَ هغه دَ پیدائش دَ کال په سلسله کښې ئې ذکر وشه.

دا دستاویزی ثبوت دَ اخون ګدا په "نافع المسلمین" کښې یوه مرثیه ده چې هغه دَ قائم خان بنګش په قتل وئیلې ده. (۱٤) دا مرثیه له دې شعره شروع کیږی:

دَ قائم دورې و دور هم دوران لاړ

دَ فلک په ګردش تار په تار ئې ځان لاړ

دَ ٤٥ شعرونو په دې مرثیه کښې له ډیرو ښو شعرونو نه صرف نظر کوم او دَ خپل مقصد سره متعلق دوه شعرونه پیش کوم:

دَ تاریخ حساب ئې "بلغ العلیٰ" دے

له دنیا په دا تاریخ بلند مکان لاړ

زه ګدا ئې په خپل ځائې باندې قائم کړم

له جهانه چې شاعر عبدالرحمان لاړ

دَ "بلغ العلی" دَ دې مادهٔ تاریخ حواله ښاغلی حبیبی مرحوم دَ اخون ګدا دَ زمانې په باره کښې ورکړې ده.(۱٤) او دَ ۱۱۷۲ھ کال ئې ترې راوکښلے دے. هرکله چې حبیبی مرحوم دَ قائم خان په باره کښې دَ تفصیلاتو نه خبر نه وه نو ځکه ئې دَ بلغ العلی نه غلط کال راوکښلے دے او مقطع کښې پټ رمز ته ئې خیال نه دے شوے.

قائم خان بنګش دَ فرخ آباد دَ ریاست دوېم نواب وه چې دَ حافظ الملک رحمت خان دَ یو عزیز سعد الله خان سره دَ جنګ په نتیجه کښې بدایون سره نژدې په ۱۵ ذی الحجه ۱۱٦۲ھ قتل شوے وه. دَ ده دَ مرګ تاریخ دَ "قائم بهشت شد" نه هم راووځی. ځکه نو دَ بلغ العلی دَ مادهٔ تاریخ نه ۱۱۷۲ھ تاریخ راوکښل غلط دی. دَ اخون ګدا دَ دې تاریخ په سلسله کښې هم تقریباً هم هغه ټوقه شوې ده چې دَ

۱۱۱۸ھ او ۱۱۱۹ھ په سلسله کښې مو ولُسته. قائم خان دَ ۱۱۶۲ھ دَ لوئی اختر دَ میاشتې په پنځلسمه قتل شوے دے او چې دلته نې خبر راتللو نو خامخا به په ۱۱۶۳ ھ کښې رارسېدلے وی. اخون ګدا چې کومې مادې نه دَ ۱۱۶۳ھ تاریخ رااېستے دے هغې کښې دَ (عُلیٰ) دَ وروستۍ "ی" په ځائې "علا" ګڼلے شوے او دَ "العلیٰ" وړومبے الف نه دے شمارلے شوے. په دې طریقه دا ماده "بلغل علا" ده. چې لیکونکی ئې دَ ۱۱۶۲ھ دَ کال دَ وروستۍ میاشتې واقعه دَ ۱۱۶۳ھ دَ کال دَ وړومبۍ میاشتې ګڼلې ده او دَ مطلع "رمز" دا ښئیی چې دَ قائم خان بنګش دَ قتل واقعې نه اخون ګدا ته دَ شاعر عبدالرحمان په ځائې دَ خپل ځان دَ "قائم" کېدو خیال راغلے دے. په دې لحاظ دَ رحمان بابا دَ وفات کال ۱۱۶۳ھ راوځی. فهو المطلوب.

که داسې نه وی نو دَ قائم خان دَ قتل دَ ذکر او دَ دغه واقعې دَ کال دَ بیانولو نه پس دَ اخون ګدا له خوا دَ عبدالرحمان بابا دَ قائم مقام کېدو دعویٰ نور څه مطلب لری. دا درې واړه خبرې چې سره یو ځائې کړو نو صفا مطلب ئې دا دے چې دَ اخون ګدا په خیال کښې دَ ۱۱۶۳ھ دَ کال درې لوئې واقعې دی یوه دَ قائم خان قتل، دوېمه دَ رحمان بابا وفات او درېمه دَ رحمان بابا په ځائې په شاعرۍ کښې دَ اخون ګدا دَ هغه قائم مقام او جانشین کېدل دی او چې دا هر څه ومنو نو دَ رحمان بابا په باره کښې به اوس لږ په کلکه دا ووئیلے شو چې دَ هغوی پیدائش په ۱۰۸۱ھ او وفات ئې په ۱۱۶۳ھ کښې شوے وه. او داسې دَ رحمان بابا عمر دوه اتیا کالو ته ورسی. او دَ هغه دَ دراز عمر په باره کښې دَ هغه دَ خپل شعر دپاره بنیاد پیدا

شی چې وائی:

دراز عمر مې حاصل شه له راستيه

لکه سرو مدام سبزه تازه پايم (۱۶)

## حوالې

۱. پښتانه شعراء لومړے ټوک ص ۱۹۳

۲. دَ رحمان بابا شعر دا دے:

اوس نوبت دَ شاه عالم دے

دور طور شه دګر (کليات ص ۸٤)

خو پښتانه شعراء کښې صرف وړومبی مصرعه راغلې ده او هغه هم غلطه يعنې په دې شکل "اوس دَ شاه عالم نوبت دے"

۳. غړګه رحمان نمبر ۱۹۸۵ء ص. ۵۵

٤. پټه خزانه دوهم چاپ ص ۱۱٤

۵. غړګه رحمان نمبر ۱۹۸۵ء ص. ۵٦

٦. کليات دَ خوشحال بابا دوېم ايډيشن ص ۸٦۱ او ۸٦۲

۷. دَ اشرف خان هجری ديوان قلمی او چاپی نسخې

۸. پښتانه شعراء لومړے ټوک ص. ۱۹۳

۹. تاريخ هندوستان دَ شمس العلماء مولوی ذکا الله خان

۱۰. دَ حبيبی مرحوم اخبار "ازاد افغانستان" پېښور دَ ۱۵ جون ۱۹۵۳ء ګڼه.

١١. غرگه رحمان نمبر ص.٦٠
١٢. حيات حافظ رحمت خان سيد الطاف على بريلوى
١٣. نافع المسلمين دَ ١٣٣٠ھ مطابق ١٩١٣ء چاپ ص ص ٢٩٨ــ٣٠٠
١٤. پښتانه شعراء لومړے ټوک ص. ٣٥١
١٥. عهد بنگش دَ مفتى ولى الله خړابادى ص. ١١٢
١٦. دَ رحمان بابا كليات ص. ١٤١

("رحمان پوهنه" رحمان ادبى جرگه پېښور ١٩٩٣ء)

# کامل مرحوم او پټه خزانه

ما دَ خپل کتاب "پټه خزانه فی المیزان" وړومبی خبرې داسې شروع کړې وې:

"ما چې دَ پټې خزانې په باره کښې وړومبی مقاله ولیکله او خپل ګران او محترم ملګری او استاذ ښاغلی دوست محمد خان کامل مومند ته مې لږه چاپ کېدو نه مخکښې واوروله نو هغوی هغو نتیجو سره دَ کلی اتفاق اظهار وکړو چې ما ئې پخپله مقاله کښې ذکر کړے وه. لږه دې نه پس محترم کامل مرحوم پنځه کاله ژوندے وه او دَ پټې خزانې په باره کښې ئې نه صرف زما رائې سره همېشه اتفاق کړے دے بلکې څو ځله ئې دا اراده ظاهره کړې وه چې دَ پټې خزانې په باره کښې خپل خیالات لږ نور وضاحت سره پښتون اولس ته پېش کړی خو دَ "۱٦۳۰ء" لیک او بیا دَ هغوی رنځورتیا هغوی له فرصت ور نه کړه او دَ هغوی دا اراده پوره نه شوه." (۱)

زما دَ دې اقتباس دَ نقل کولو نه پس چې ښاغلی زرین انځور په خپله مقاله کښې په ما کوم اعتراضات کړی دی دَ هغو اختصار دا دے:

۱. په تحقیقی لیکنو کښې هیڅ کله په داسې شفاهی حوالو (او هغه هم دَ یو مرحوم لیکوال په باب) استناد نه شی کېدلے...

۲. که چرې مرحوم استاذ کامل مومند ته دَ پټې خزانې په باب

څه شک پیدا شوے وي او یا ئې دَ پټې خزانې په کوم اړخ دَ څه لیکلو نیت لرلے نو خامخا به ئې ... لیکلے څرګند کړے وے او چاپ کړے وے.

۳. اوس څوک څنګه دَ هغه پیاوړی استاذ له وفات څخه څو کاله وروسته دا خبره دَ سند په توګه کولے شی چې ما ته ئې یو وخت داسې وئیلی وو.

٤. علمی لیکنه سند غواړی او له سند او شهادت پرته باید نور څه و نه منل شی.

٥. اوس دَ هغه مرحوم استاذ په باب دَ داسې خبرو کول دَ علمی او تحقیقی لیکنې په خولی کښې هیڅ کله نه شی ځائېدلے. (۲)

دا پنځه واړه نکتې ما هم دَ ښاغلی زرین انځور په الفاظو کښې لیکلی دی خو املا مې ورلره داسې بدله کړې ده لکه چې ښاغلیو آصف صمیم او زرین انځور زما دَ اقتباساتو املا بدله کړې وه.

په دې پنځو واړو نکتو دَ تفصیلی بحث نه اګاهو زه له ښاغلی زرین انځور نه دا پُښتنه کول غواړم چې دوی هم دغه اعتراضونه دَ ښاغلی عبدالحئ حبیبی مرحوم په هغه دعویٰ ولې نه کوی چې دَ پټې خزانې دَ قلمی نسخې په باره کښې دَ علامه عبدالعلی اخونزاده له وفاته پس ښاغلی حبیبی کړې ده او ما پرې په "پټه خزانه فی المیزان" کښې مفصل بحث کړے دے.(۳) ځکه نو پکار خو دا وو چې ما دا بحث په دې رالنډ کړے وے چې څه چې ستاسو ځواب وی هم هغه زما ځواب دے. خو زه دَ ښاغلی انځور دَ پنځو

واړو نکتو نه دَ راوتونکې نتیجې مفصل ځواب ورکول غواړم او خدائې پاک دې وکړی چې زما په ځواب دَ بناغلی انځور او دَ هغوی دَ نورو ملګریو تسلی وشی.

زما په خیال کښې دَ پټې خزانې دَ چاپ کېدو نه پس په وړومبی ځل کامل مرحوم دَ دې کتاب په یوه حصه تنقید کړے وه. دا حصه دَ رحمان بابا دَ وفات دَ تاریخ سره متعلقه وه چې پټه خزانه ئې ۱۱۱۸هجری بیانوی(٤) او کامل مرحوم پرې داسې تنقید کوی:

"دَ مُلا عبدالرحمٰن دَ ولادت او وفات دَ تاریخ په باره کښې صحیح علم نشته. دَ پټې خزانې مؤلف دَ دوی ولادت په ۱۰٤۲ هجری او وفات په ۱۱۱۸هجری کښې لیکلے دے. تر څو چې دَ وفات دَ مبینه کال تعلق دے دَ دې دَ غلط کېدو ډېر قوی دلیل موجود دے. دَ عبدالرحمان دیوان کښې دَ اورنګ زیب دَ زامنو محمد معظم شاه عالم او دَ محمد اعظم دَ جنګ ذکر دے چې دَ اګرې او دولپور تر منځه دَ جاجو په مېدان کښې په ۱۸ ربیع الاول ۱۱۱۹هجری (۱۸ جون ۱۷۰۷ء) شروع شوے او درې ورځې پس دَ شاه عالم په فتح منتج شوے وه. دَ ولادت دَ مبینه کال متعلق هم څه وئیلے نه شو. دَ وفات دَ کال دَ غلطېدو په وجه هغه هم مشکوک شی. پټه خزانه ص. ۹۳. (٥)

هر څو که دَ وفات دَ کال دَ غلطېدو په وجه دَ ولادت دَ کال دَ مشکوکېدو عقیده لرل دا نتیجه هم پیدا کولے شی چې دَ رحمان بابا چې دَ پټې خزانې دَ مؤلف معاصر وه دَ ولادت او وفات دَ کلونو دَ غلطېدو په سبب دا ټول کتاب مشکوک دے خو مونږ به دَ کامل

مرحوم عقیده کښې دومره توسیع نۀ کوؤ ځکه چې وروستو به هم دغه عقیده د هغوی په خپلو الفاظو کښې څرګنده شي.

دَ خوشحال بابا په باره کښې دَ کامل مرحوم دَ اُردو کتاب په دې حاشیه ښاغلی عبدالحئ حبیبی مرحوم چې هغو ورځو کښې پېښور کښې وه یو جوابی مضمون ولیکلو چې دَ کامل مرحوم استنباط ئې غلط وګڼلو او دا دلیل ئې پېش کړو چې دَ رحمان بابا په قصیده کښې دا:

شاه عالم اعظم وګوره چې ئې خسا کړ
په خونونو واړه ملک دَ هندوستان

اشاره هغو جنګونو ته ده چې دَ دواړو وروڼو تر مینځه واقع شوی وو.(٦) دَ دوی دَ دې مضمون په ځواب کښې ښاغلی کامل مرحوم یوه بله مقاله ولیکله(۷) چې پکښې ئې دَ حبیبی مرحوم دَ بیان کړیو واقعاتو او دلیلونو تشریح وکړه او دَ معتبرو اسنادو په بنا ئې په تفصیل سره په دې بحث کړے وه چې دَ دواړو وروڼو (شاه عالم او اعظم) په مینځ کښې دَ پلار په ژوند او نۀ تري پس بې دَ جاجو دَ جنګ نه بل کوم جنګ شوے وه.(۸) او له دغه پسه ښاغلی حبیبی مرحوم څه ځواب ور نۀ کړه او دغسې ئې دَ رحمان بابا دَ وفات دَ کال په سلسله کښې دَ پټې خزانې او خپله غلطی تسلیم کړه.

لکه چې مې مخکښې عرض کړے دے دا دلیل زۀ دومره نۀ اوږدوم خو کم از کم دا ترې ثابتوم چې کامل مرحوم دَ پټې خزانې روایت داسې نۀ ګڼلو چې زمونږ دَ افغانستان وروڼه ئې ګڼي. دې ضمن کښې دَ کامل مرحوم دَ کتاب "رحمان بابا" نورې حوالې هم پېش

کېدے شی چې دا ترې ثابتیږی چې هغوی پټه خزانه یو تاریخی دستاویز نه بلکې افسانه او قصه ئې ګڼله.(۹) او دا ئې عقیده وه چې په پټه خزانه کښې نورې هم ځنې غلطې خبرې او ضعیف روایات دَ هغه وخت او کسانو په باب لیکلی بیاموندے شی چې دَ کتاب "پټه خزانه" دَ مؤلف دَ ژوند زمانې سره سم یا هغې ته ډېر نژدې وو. (۱۰) دَ پټې خزانې په موجودګی کښې چې کامل مرحوم وائی:

"دَ رحمان بابا دَ ذات او ژوند په باب .... نور هیڅ نه دی معلوم چې په حېثیت دَ تاریخ قبول کړے شی." (۱۱) نو له دې دا نتیجه وکښلے شی چې کامل مرحوم پټه خزانه تاریخی کتاب نه ګڼی.

ما چې دَ "پټه خزانه فی المیزان" دَ عنوان لاندې وړومبی مقاله ولیکله او کامل مرحوم ته مې واوروله نو په دغه سلسله کښې دَ موقعې یو ګواه ښاغلے سیف الرحمان سلیم هم وه چې دَ پښتو منلے شاعر دے او دَ اولسی ادبی جرګې کشر سکتر هم پاتې شوے دے.دَ ده دَ تحریری بیان متن دا دے. (املا ئې ما بدله کړې ده)

" داسې واقعه شوې وه چې (زه) قلندر مومند صاحب له ورغلے وم او هغه سره مې ګپ لګولو نو هغه دَ ګپ موړ کښې نه وه ماته ئې وې چې په "پټه خزانه" مې یو تحقیقی مضمون لیکلے دے هغه واوره بیا کامل صاحب له ځو چې هغوی ته هم دا مضمون واوروم. ما ورته وې دوه ځله ستا مضمون نه شم اورېدلے ځه چې کامل صاحب له ځو هلته به ئې واورم. دا کافی ده.

کامل مرحوم بیمار وه او خپل کور کښې وه قلندر مومند دغه مضمون واورولو. هغوی ډېر خوښ کړو او وې ئې چې ستا دَ دې

تحقیق ستائینه کوم ډېر زیار دې کارېلے دے." سیف الرحمان سلیم ۱۲ مئ ۱۹۹۲ء

دَ ښاغلی سلیم دا لیک ښاغلی ګل محمد بېتاب سره پروت دے او هغه پرې "لیکوال" کښې تبصره هم کړې ده.(۱۲) دَ دې تبصرې په دویم قسط کښې دَ ښاغلی سید محمود ظفر شهادت هم شته چې هغه هم دَ سلیم صاحب دَ خبرې تائید وکړه. هغه ووې چې دَ کامل صاحب ځائې ته ورغلے وم نو هغوی راته ووئیل چې قلندر صاحب په "پټه خزانه" ډېر ښه تنقید کړے دے او زما تنقید هم پرې راروان دے خو زه به ئې دَ پښتو په ځائې په فارسی کښې لیکم." (۱۳)

هم دغسې ګران دوست او پیاوړی لیکونکی ښاغلی سیف الرحمان سید یو ګران لیک ماته لیکلے دے چې متعلقه حصه ئې زه ګرانو لُستونکیو ته پیش کوم:

"زرین انځور ورور غالباً چې دا اعتراض کړے دے چې دَ ګران مشر دوست محمد خان کامل مومند دَ وفات نه پس ستا دا خبره چې " کامل صاحب زما سره اتفاق وه" دَ منلو نه ده.

زه عرض کوم چې زه په دغه ورځو کښې په پښتو اکېډیمی کښې پروف ریډر وم. دا کوم مضمون چې ښاغلی قلندر صاحب دَ پښتو دپارډ رااستولے وه دَ هغه مضمون دَ اخری صفحې په شا دَ کامل مومند صاحب لیک او دستخط موجود وه."

که دې ټولو شهادتونو ته ښاغلے زرین انځور او دَ هغوی ملګری حتمی شهادت نه وائی نو اوس به زه په دې سلسله کښې یو

داسې شهادت پېش کړم چې هغه به دَ بناغلی زرین انځور هغه ټولې مطالبې پوره کوی چې هغه په خپله مقاله کښې پېش کړی دی.

کامل مرحوم دَ کراچۍ دَ انګرېزی اخبار "ډان" دپاره دَ مغلو دور کښې دَ پښتو ادب" دَ عنوان لاندې یوه اوږده مقاله لیکلې وه چې هغه اخبار پوره چاپ نه کړه. ما دَ اخبار دَ هغې ګڼې دَ پیدا کولو ډېر کوشش وکړه خو کامیاب نه شوم. دَ کامل مرحوم دَ دوېم زوی ذاکر حسین (چې دَ کامل مرحوم دَ کتابونو انچارج وه) نه مې هم څو څو ځله دا پُښتنه وکړه چې هغه چاپ شوې مقاله یا دَ هغې مقالې اصل زما دپاره دَ کامل صاحب دَ کاغذاتو نه راوباسی خو ذاکر حسین به هر ځل دَ تلاش نه پس ته دَ خپلې ناکامۍ اعتراف کولو. خو دغه اصل مقاله یو داسې کس دَ کامل مرحوم له کاغذاتو نه تر لاسه کړې وه چې دَ پټې خزانې په سلسله کښې ما سره ډېر زیات اختلاف لری. خدائې کول چې دغه مقاله هم دَ هغه په وساطت "فرنټیئر پوسټ" ته ورسېده او دَ دغه اخبار په شپږو قسطونو کښې چاپ شوه. له دغو مقالو ځنې څو اقتباسات پېش کوم:

١. ورومبنے پښتون لیکونکے چې یو شاعر دے او دَ هغه دَ شخصیت او شاعرۍ تاریخی اصلیت باندې تر معقوله حده هیڅ شک نه شی کېدے شیخ عیسیٰ مشوانی دے... چې دَ لوئې باچا شېر شاه سوری معاصر وه. (١٤)

پټه خزانه امیر کروړ ورومبنے پښتو شاعر ګڼی او چونکې کامل مرحوم شیخ عیسیٰ مشوانی ورومبنے شاعر ګڼی نو ځکه کامل مرحوم دَ پټې خزانې په روایت یقین نه کوی.

٢. دا "خېرالبيان" هغه کتاب دے چې مونږ ته تر اوسه پورې دَ دريافت شوی نثر وړومبنی نمونه پېش کوی او له دې سببه دَ هغه (پير روښان) په ټولو کتابونو کښې صرف دَ دې کتاب په وجه مونږ دَ پښتو ادب دَ پېدائش، ارتقا او ودې دَ تاريخ په ضمن کښې ورسره علاقه لرو.(١٥)

دَ دې په مقابله کښې پټه خزانه ابو محمد هاشم سروانی البستی وړومبنے نثر ليکونکے او "دَ سالو وږمه" وړومبے دَ نثر کتاب ګڼی نو دلته هم کامل مرحوم دَ پټې خزانې په روايت دَ شک اظهار کړے دے.

٣. دَ مصدقه تاريخ دَ معيار مطابق دَ شيخ عيسیٰ مشوانی نه پس ارزانی خوېشکی له ټولو نه وړاندينے معلوم شاعر دے. (١٦)

دَ کامل مرحوم دا عقيده هم دَ پټې خزانې سره مطابقت نه خوری او ځکه وئيلے شو چې هغوی په دې سلسله کښې هم دَ پټې خزانې په رواياتو اعتبار نه کولو.

٤. افغانستان کښې چاپ شوے کتاب "پټه خزانه" دَ شاعر (رحمان بابا) دَ ولادت او وفات کلونه ١٠٤٢هجری (٣٣.١٦٣٢ء) او ١١١٨هجری ورکوی. خو دَ دې کتاب سند ډېر مشکوک دے. (١٧)

دلته سند دَ Authenticity ترجمه شوې ده حالانکې دَ دې لفظ ترجمه اصليت هم کېدے شی. خو دلته هم دغه پکار وه خو ما دَ اعتراض کونکيو دپاره دا لفظ سند وليکلو.

دَ دېو حوالو دَ لُستلو نه پس هم که څوک دَ کامل مرحوم په باره کښې دا خيال لری چې دَ پټې خزانې په باره کښې دَ هغوی رائې

زما له ښکاره کړې رائې نه بدله وه نو دا دَ هغه خوښه. رښتیا هم هغه دی چې ما وئیلی دی او هغه دا چې هغوی دَ پټې خزانې په باره کښې زما نتیجو سره کُلی اتفاق ظاهر کړے وه او هېڅ وخت ئې هم په دغه رائې کښې ترمیم نه وه کړے.

## حوالې


۱. پټه خزانه فی المیزان وړومبی خبرې ص. ٥

۲. دَ پټې خزانې میزان رښتیا میزان دے؟ محمد آصف صمیم او زرین انځور ص ص ۱٦.٤۱

۳. پټه خزانه فی المیزان ص ص ۱۰.۹ او بیا صفحات ۱٥٥.۱٤٤

٤. پټه خزانه دریم چاپ (عکسی) ص ٥٤

٥. خوشحال خان خټک دَ کامل مرحوم دَ اُردو کتاب دَ ص ٤۰۳ حاشیه

٦. آزاد افغانستان پېښور ۱٥ جون ۱۹٥۳ء

۷. هم دغه رساله ۲۰ اکتوبر ۱۹٥٤ء

۸. رحمان بابا دوست محمد خان کامل مومند دویم چاپ ص ص ۱۹ او ۲۰

۹. هم دغه کتاب ص ۱ حاشیه (۲)

۱۰. هم دغه کتاب ص ۹

۱۱. هم دغه کتاب ص ۱۷

۱۲. دَ ګل محمد بیتاب تکل "پټه خزانه فی المیزان" وړومبے

قسط لیکوال پښتور پینځمه ګڼه جولائی ۱۹۹۲ء

۱۳. هم دغه تکل دوېم قسط اتمه ګڼه اکتوبر ۱۹۹۲ء

۱٤. فرانټئیر پوسټ دَ اپرېل دَ لسم تاریخ ګڼه ۱۹۹۳ء ص ۱۲ کالم ۱

۱۵. فرانټئیر پوسټ دَ اپرېل ۱۷ تاریخ ګڼه ۱۹۹۳ ص ۲۱ کالم ۱

۱٦. هم برنی پرچه کالم ۲

۱۷. فرانټئیر پوسټ دَ مئ ۸ تاریخ ګڼه ۱۹۹۳ء ص ۲۱ کالم ٦

(درې میاشتنی کتابی سلسله "تماس" دوېمه ګڼه کوئټه)

# دَ پښتو ادب عصری تقاضې

دَ کانفرنس دَ محترمو منتظمینو ارشاد دے چې زهٔ دې "دَ پښتو ادب عصری تقاضې" دَ عنوان دَ لاندې دَ خپلو خیالاتو څرګندونه وکړم خو زما پهٔ خیال دا عنوان "پښتو ادب او عصری تقاضې" پکار وهٔ ځکه چې دَ کانفرنس دَ منتظمینو لهٔ خوا غوره شوے عنوان تکنیکی او تر ډېره حده خارجی مضمرات لری. دَ دې پهٔ مقابله کښې کهٔ زما دا عرض کړے شوے عنوان مقرر کړے شوے وے نو شاید چې دَ دې عنوان لاندې ما پهٔ هغه ټولو ادبی مسائلو خپل خیالات څرګند کړے وے چې نن پهٔ عالمی سطح دَ دنیا ټولو ژبو ته پېښ دی. ولې دَ محترمو منتظمینو دا اصرار هم دے چې مقاله دې دَ موضوع پهٔ چوکاټ کښې دننه وی ځکه نو دَ هغوی دَ ارشاد دَ احترام پهٔ طور زهٔ هم پهٔ هغه موضوع خپل خیالات وړاندې کوم چې هغوی تجویز کړې ده.

اول خو به پهٔ دې خبره دَ محترمو منتظمینو نه معافی غُښتل ضروری دی چې ما پهٔ موضوع دَ څهٔ وئیلو نه اګاهو یو وړوکے غُندې تمهید پیش کړهٔ او داسې مې مقاله دَ موضوع دَ چوکاټ نه خارجه کړه خو زما پهٔ خیال خپله مقاله دَ موضوع پهٔ چار دیواری کښې دَ راګېرولو دپاره دا ناګزیره وه.

دَ ادب عصری تقاضې بنیادی طور سره دریو موضوعاتو سره

تعلق لري. دا موضوعات ليکونکی، ليکونه او لُستونکی دی او چې هر لحاظ سره غور کوو نو هم دَ دېو درېو موضوعاتو په بدلون عصری تقاضې بدلیږی رابدلیږی. ځکه نو زهٔ به هم خپله مقاله په بنيادی ډول هم دېو موضوعاتو ته محدودوم او کهٔ نورې خبرې کوم نو دَ هغو حېثيت به اضافی او ثانوی وی.

دَ ادب ليکونکی، ليک او لُستونکی يو متساوی الاضلاع مثلث دے چې هره ضلع ئې مساوی اهميت لری او زهٔ کهٔ دَ دوی ذکر يو بل پسې کوم نو دَ دې دا مطلب نهٔ دے چې دا ترتيب دَ دوی دَ اهميت ترتيب دے. اديب چې ليک کوی نو دَ لُستونکيو تقاضې دَ نظر لاندې ساتی. دَ لُستونکيو ذوق دَ خپل عصر دَ عمل او ردعمل په نتيجه کښې پېدا کيږی او ليک دَ دواړو تر منځه دَ رابطې بنياد وی او کهٔ دَ اقليدس هم هغه تشبيه جاری وساتو نو ليک دَ دې متساوی الاضلاع مثلث قاعده وی.

پښتو زړه ژبه خو ده ولې لهٔ بده مرغه ترقی يافته ژبه نهٔ ده او هم په دې وجه دَ دې ژبې ليکونکی، ليکونه او لُستونکی لهٔ عصری تقاضو سره سمون نهٔ لری. او ځکه نو دَ دې مقصد دپاره به وړومبے داسې ليکونکی په کار وی چې ورته په عامه ژبه کښې "پېشه ور" ليکونکی وئيلے شو. ځکه چې "شوقيه" فنکاران دَ ادب دَ ترقۍ دپاره منظم کوششونه نهٔ شی کولے او کهٔ دَ ژبې مستقبل دې شوقيه ليکونکيو ته پرېښودے شهٔ نو ژبه او ادب به په خپل ځائې پاتې شی.

ښرګنده او بالکل واضحه خبره ده چې "پېشه ور" ليکونکی په هوا کښې نهٔ شی پېدا کېدے. مونږ دَ هغو ټولو لويو او کلاسيکی

لیکونکیو احسان مند یُو چې دَ شوقیه لیکونکیو په حیثیت ئې زمونږ ادب ته عظیمې بخښنې کړې دی خو دَ ننني عصر تقاضا دا ده چې دَ ژبې دَ ترقۍ دپاره دې لیکونکی دَ یوې "پېشه ورې" طبقې په حیث منظم شی. دا زمونږ دَ ادب ورومبی عصری تقاضا ده.

دَ پېشه ور لیکونکیو دَ ضرورت اضافی وجوهات هم شته. مثلاً دَ لُستونکیو په مزاج پوهېدل او دَ هغو دَ مزاج مطابق ادب تخلیقول دَ ادب دَ ترقۍ دپاره ضروری دی. دا کار شوقیه لیکونکی نه شی کولے ځکه چې دَ هغه په لُستونکی هیڅ پوره نیمگړې نشته. له دې نه هم زیاته اهمه وجه دا ده چې ننني عصر کښې هیڅ یوه ژبه داسې نه شی پاتې کېدے چې دَ بلې ژبې خاص طور سره ترقی یافته ژبې نه دَ موضوع یا دَ لیک شان پور وانه خلی. په دې غرض یوه طبقه داسې پېدا کېدل ضروری دی چې هغه دَ پښتو ادب او ژبې دپاره دا کار کوی. که داسې ونه شو نو دوه نتیجې به ئې پېدا کیږی. یا خو به دَ اخذ او پور دا کار اوپره لاسونو ته لاړ شی او ادب کښې به اومه او بې معنې موضوعات او لیک شانونه راننوځی او یا به بیا پښتو دَ هم عصر لیکونکیو دَ اثر نه محرومه پاتې شی او صرف په هغو تخلیقاتو به گوزاره کوی چې دَ اولسی ادب په مېدان کښې به کیږی او داسې به دَ لُستلو په مقابله کښې دَ اورېدلو فن زیاته ترقی وکړی.

دَ پېشه ور لیکونکیو دَ پېدا کولو یا پېدا کېدو دپاره ځنې خبرې او شرائط ډېر ضروری دی. لیکونکے به هله پېشه ور کیږی چې هغه په دې "پېشه" ځان ساتلے شی. داسې نه لکه چې اوس لیکونکے دَ ځان ساتلو دپاره نورې پېشې اختیاروی او بخښنې ادب ته کوی. بیا به

دَ لیکونکی مشغله دَ هغهٔ پېشه منی او لکه څنګه چې نورې پېشې ورو ورو دَ صنعت مقام حاصلوی داسې به ادب هم هم دغه مقام حاصل کړی چې دَ عصر یوه بله تقاضا به پوره شی.

دَ دېو حالاتو دَ پیدا کولو پهٔ غرض به دَ لیکونکیو دَ "پېشه ورې" طبقې دپاره دَ لُستونکیو یو منظم ګروپ یعنې لُستې او خوانده معاشره ضروری وی. دا خوانده معاشره تر هغه وخته نهٔ شی پیدا کېدے تر څو چې پښتو دَ مدرسې او دَ بازار ژبه نهٔ شی. زمونږ پهٔ ګاونډی ملک افغانستان کښې کهٔ پښتو عمودی ترقی نهٔ ده کړې نو افقی ترقی ئې محض او محض پهٔ دې وجه کړې ده چې دغه ملک کښې پښتو دَ مدرسې او بازار ژبه ده.

دَ پښتو دپاره دا درجه حاصلول ډېر ضروری دی او دَ دې مقصد دپاره یواځې پهٔ مختلفو سطحو دَ جدوجهد کولو ضرورت نهٔ دے بلکې دَ تحریر دَ ژبې دَ عام کولو دپاره دَ لیک دود دَ اصلاح انتهائی زیات ضرورت دے. خومره دَ بدقسمتۍ خبره ده چې مونږ دعوې خو دَ پښتو دَ ترقۍ کوو خو تر اوسه دا پلنه او خوره پښتونخوا پهٔ لیک دود متفق نهٔ شوه. زما پهٔ خیال پهٔ یو لیک دود نهٔ متفق کېدل دومره خطرناکه خبره نهٔ ده لکه چې تر څهٔ نه څهٔ حده متفق علیه لیک دود کښې غلطۍ کول خطرناک دی. دا "عصری تقاضا" ډېر اوږد تفصیل غواړی او څرګنده خبره ده چې پهٔ دومره لږ وخت کښې ورته دَ دې مقالې دَ نورو مباحثو غُندې صرف اشاره کېدے شی.

دَ یوې خوانده معاشرې پهٔ موجودګۍ کښې به عصری تقاضې بدلیږی او بیا به دَ لیکونکی او لُستونکی دواړو دپاره دَ لیک مسئله

راپېدا کیږي. لیکونکي لره څه لیکل په کار دي او لُستونکے به څرنګه لیک خوښوي. دَ دې دارومدار دَ هغه وخت په ذوق باندې وي. خو دَ دې ذوق دَ تسکین دپاره به دَ اخبارونو، رسالو او کتابونو ضرورت وي او ذوق کښې دَ بدلون سره سره به دا تقاضې خامخا بدلیږي. خو اخر دَ لیک لُست دا کار به له یوه ځایه شروع کول غواړي. زما په خیال به دَ لُستونکي دَ ذوق دَ بهتر تسکین دپاره مفیده ذریعه دَ هغو کتابونو او مضمونونو ترجمې په پښتو کښې کول وي چې دَ دنیا په نورو ژبو کښې دَ کلاسیک درجه لري. که دَ نورو ژبو دَ شاعرۍ او فکشن دَ هغو کتابونو ماهرانه ترجمې وکړے شي چې پرې نوبل انعامونه ورکړے شوي دي نو په لږ وخت کښې به پښتانه لُستونکي دَ دنیا له بهترین ادبه مستفید شي. دَ دې سره سره که دَ هرې ژبې خاص طور سره دَ جرمن، فرانسیسي، انګریزي، روسي، ترکي، چیني او نورو ترقي یافته ژبو دَ شاعرۍ، فکشن او تنقید پنګه پښتو ته رامنتقله شي نو په یوه ټوپ به پښتو هغه مقام حاصل کړي چې حاصلول ئې پکار دي او داسې به په اسانۍ دَ عصري تقاضو ماؤنټ ایورسټ فتح کړے شي.

پښتو ژبه زمونږ په سیمه یوه مستقله ادبي رساله چې باقاعدګۍ سره چاپ کیږي نه لري. دَ پښتو اکېډیمۍ او دَ پریس انفارمېشن دَ محکمې رسالې په شتو خو شته ولې دَ یو شان حالاتو په وجه انتهائي بې قاعدګۍ سره چاپ کیږي. دَ ادبي رسالو او مجلو له اهمیته انکار نه شي کېدے. ځکه چې دا یواځې دَ ادبي ذوق تخلیق نه بلکې دَ دې ذوق مسلسل تربیت کوي او دَ دې سره سره ادب، تل په حرکت کښې ساتي. زمونږ ادب که نن له حرکته محروم دے نو لویه

وجه ئې دَ ادبي مجلو نشتے دے ځکه نو کوم څيز چې دَ دنيا دَ هر ادب دپاره دَ ننني عصر تقاضا ده هغه دَ پښتو دپاره هم اهميت لري او سترګې پټول ترې يو خورا لوئې حماقت دے.

دَ يوې ژبې دَ ماضي دَ حال سره پېوستون او په دې پېوستون دَ مستقبل عمارت جوړول دَ تنقيد او تحقيق موضوع وي. دَ ادب دَ نورو شعبو په شان په دې ميدان کښې هم هغه دَ شاعر خبره:

یک حرف کاشکه بصد جا نوشته ایم

پښتو کښې څه عمودي ترقي نشته که څه لږه ډېره افقي ترقي ښکاري نو هغه هم له عصري تقاضو نه ډېره کمه ده. ضروري خبره دا ده چې مونږ له سائنسي نقطهٔ نظره په دې ډېره اهمه مسئله غور وکړو او دَ سياسي تاريخ سره سره دَ ژبې او دَ ادبياتو واقعي او حقيقي تاريخ بيا له نوي سره مرتب کړو ځکه چې له ښه بخته دَ زلميو محققينو دَ زيارونو په نتيجه کښې داسې حقائق او شواهد مخې ته راغلي دي چې دَ هغو په وجه زاړه معلومات ترميم طلب شوي دي. اوس نوي حالات دا تقاضا کوي چې زلمے ګُول او خاص طور سره راتلونکي پښتانه نسلونه دَ "قال...." دَ تقليدي رواياتو له ګمبته بچ کړلے شي. تاريخ او تحقيق کښې لکه دَ ژوند دَ نورو حقائقو په شان يو څيز هم اخري او حتمي نه وي نو که زمونږ زلميو محققينو زاړه اُمور غلط ثابت کړي وي نو مونږ لره پرې تندے بوتهول نه دي پکار او رښتيا که هر څومره تراخه وي قبلول ئې پکار دي. په دې طريقه به مونږ دَ دې قابل شو چې دَ خپل سياسي او ادبي تاريخ ابتدا له صداقته وکړو او دَ شک او ګُمان له تيرو نه دَ علم رڼا ته راوځو.

پښتو لکه چې مخکښې عرض وشه ډېره زړه ژبه ده خو مونږ
له له دې حقیقته انکار نه دی کول پکار چې بنیادی طور سره دَ پښتو
کلچر زبانی وه. دَ دې زبانی کلچر مظاهره زمونږ په اولسی سندرو
کښې شوې ده. مونږ له په ډېر جرأت دَ دې ناکامی اقبال جرم کول
پکار دی چې مونږ دَ احساس او شعور باوجود دا اولسی سندرې
راغُنډې نه کړے شوې او په دې طریقه مو یوه لویه عصری تقاضا دَ
پښو دَ لاندې کړې ده. اوس هم ډېر تاخیر نه دے شوے او هغه دَ سیند
په غاړه دَ چپو شمېرونکی په شان په تېرو غلطیو دَ ژړا په ځائې بیا
له سره دا چپې شمېرل پکار دی. که مونږ په غرو رغو او کېږدېو
کښې ورکېدونکې دا مرغلرې اوس هم راټولې کړې نو دَ خپل ادب ته
بنا Infra Stucture پرې مضبوطولے او دا قیمتی خزانه له فنا کېدو
محفوظولے شو.

دَ دېو ټولو تدابیرو دَ اختیارولو په نتیجه کښې به داسې
خامخا کیږی چې دَ یو تدبیر له بطنه به بل تدبیر او بیا له بل تدبیره
به یو نوے تدبیر پیدا کیږی او دَ یو عصری تقاضې پوره کول به بله
تقاضا راټوکوی. دَ مثال په طور دَ ادبی تاریخ دَ بشپړولو او تر اوسه
لیکلو تاریخونو باندې دَ نظر ثانی کولو او دَ اولسی سندرو دَ راغُنډولو
په نتیجه کښې به زمونږ دَ ژبې لمن دَ خیالونو نه علاوه دَ توریو دَ
اضافې په وجه هم ډکیږی. دا نوی توری به په ډکشنریو کښې
محفوظول ضروری وی نو لازمه خبره ده چې دَ توریو دَ زیاتېدو دا
عمل به هم مسلسل وی او دَ دې مسلسل عمل دپاره به په دغه مېدان
کښې دَ مسلسل تحقیق ضرورت پېښیږی. کار به زیاتیږی او دَ کړاؤ،

محنت او زیار زیات ضرورت به پېدا کېږی او دا به ځان له خپلې تقاضې هم پېدا کوی چې پوره کول به ئې پکار وی او که مونږ دېو کارونو کښې له یوه کاره هم بې پروائی وکړه نو دا مسلسل عمل به خامخا دَ دائرې په منځ کښې دَ ماتولو باعث کېږی.

هم دغسې دَ ادبی رسالو، مجلو، کتابونو او اخبارونو دَ چاپولو مسئله ده. په هغه سطح چې ما ورته اشاره وکړه دَ کار کولو دپاره به دا ضروری وی چې دَ چاپولو دا موجوده طریقه بدله کړے شی. دَ چاپ موجوده طریقه دَ کاتبانو دَ زیات شمېر تقاضا کوی. پښتو کښې کاتبان هسې هم کم دی ولې ښه کاتبان خو بېخی کم دی. دَ سرحد دَ بې شمېره اُردو خپرو اخبارونو له کبله هم دغه کاتبان اُردو او پښتو په یوه وخت لیکی او نتیجه ئې دا ده چې دَ پښتو دَ خط معیار ورځ په ورځ مخ په زوال دے که دَ اُردو او انګریزی دَ چاپ شوی کتاب دَ صفحې سره دَ پښتو یوه چاپ شوې صفحه دَ محدبی ښیښې دَ لاندې کښېښوے شی نو پخپله به ثابته شی چې دَ پښتو موجوده خط څومره کچه، بې اصوله او زوال پذیر دے. دَ مطبوعاتی موادو دَ زیاتی سره به دا مسئله نوره هم پېچیده کېږی بلکې زما په نزد خو اوس هم ډېره پېچیده ده ځکه چې مونږ ته په موجوده پیمانه دَ کار کولو دپاره هم ښه کاتبان نه میسر کېږی نو چې دا کار زیات شی نو بیا خو به کاتبان بېخی نه یافتیږی.

زمونږ دَ مطبوعاتی صنعت له ټولو نه نازک مزاجه عنصر دا کاتبان دی. په خپله خوښه خو دوی هیڅکله دې ته تیار نه وی چې ښه کار وکړی او که فشار پرې واچولے شی نو له کاره انکار کوی او دَ

پښتو په ځائې اُردو ته ترجیح ورکوی. له دې کبله دوی سره ګوزاره ډېره ګرانه شوې ده. دَ دې مشکلاتو دَ حل کولو دوه طریقې دی یا خو دې دَ خوش نویسانو تعداد زیات کړے شی او یا دې له خوش نویسانو نه پښتو ته نجات ورکړے شی.

دَ خوشنویسانو په تعداد کښې دَ اضافې کولو هم دوه طریقې دی یا خو دې دَ پښتو دَ لیک اُجرت دومره زیات کړے شی چې دَ پښتو کاتبان دَ پښتو کار کولو ته دَ مالی محرکاتو Incentives له وجهې مجبور شی او که داسې کول دَ څنو وجوهاتو له کبله ممکن نه وی نو بیا دویمه طریقه دا ده چې په حکومتی سطح دې یوه داسې اداره قائمه کړے شی چې هغه خوش نویسان پیدا کول شروع کړی. دَ بې روزګاری په وجه موجوده صورت حال کښې که دَ زده کړې په دوران کښې داسې شاګردانو له وظیفه ورکول شروع کړے شی نو دا هیله کېدے شی چې په لږه موده کښې به په ګڼ شمېر کښې ښه کاتبان په لاس راتلل شروع شی او په ښه خط به دَ کتابونو او رسالو وغېره چاپ کول اسان شی.

لیکن که په دې منصوبه دَ مسلسلو اخراجاتو له وجهې دا قابل عمل ونه ګڼلے شی نو بیا ئې متبادل حل دا دے چې هډو دَ کتابت دا طریقه دې ختم کړے شی او دَ چاپ په مېدان کښې دَ راوتلو نوؤ طریقو نه دې استفاده وکړے شی. دَ مونو ټائپ او کمپیوټرائزډ چاپ خانو دَ راوتلو سره دا کار ګران نه دے. اُردو کښې دَ نوری نستعلیق طریقه اوس اوس عامه شوې ده او ډېرو اخبارونو اوس دَ چاپ کېدو دپاره دغه طریقه غوره ګڼلې ده. هم په دغو خطوطو مونږ دَ

پښتو دپاره هم دغه اسانی راوستے شو. که دَ دې مقالې په سر کښې دَ لیک دود په باره کښې زما معروضات دَ توجه قابل وګڼلے شی او پښتانه په یو لیک دود راغُنډ کړے شی نو دَ دغه متفقه لیک دود په بنیاد دَ چاپ دَ نوو طریقو نه ډېر مفید کار اخستلے شو. له بنه بخته زمونږ تر منځه اختلاف بنیادی نه دے یو څو توری دی چې دَ هغو په استعمال اختلاف دے. که دا اختلاف رفع کړے شی نو مونږ دَ ټائپ په مېدان کښې له جدیدو سهولتونو نه کار اخستے شو.

مونږ ټول په دې متفق یُو چې دَ پښتو معاشرتی ژوند ډېر په تېزئ دَ بدلون له عمله Process تېرېږی مونږ چرته په ورشیز Pastoral نظام کښې اوسو او چرته په فیوډلی معاشره کښې. ځنو ځایونو کښې دا فیوډلی معاشره هم سرمایه دارانه او صنعتی معاشره کښې بدلیږی. یوه ډېره عجیبه ټوقه زمونږ معاشرې سره دا کیږی چې دَ ورشیز Pastoral نظام خلق شپه په شپه صنعتی علاقو کښې مېشته شی او داسې دَ عمرانی تاریخ یوه داسې واقعه راپېښه شی چې دَ دنیا دَ عمرانیاتو عالمانو پرې چرې غور هم نه دے کړے. دَ سوات دیر او چترال دَ انتهائی پس مانده کلیو خلق چې دَ مزدورئ په تالاش کښې کراچۍ ته ورسی نو دا معاشرتی انقلاب دومره ژر او تېز رفتار شی چې په خارج او داخل ئې دَ عمل او رد عمل په اسانه اندازه لګول ډېر ګران شی. داسې صورت حال کښې زمونږ کلچر او دَ کلچر سره سم زمونږ دَ ادب تقاضې چې څومره ژر بدلیږی، دَ هغې بدلون په باره کښې دَ عمرانیاتو ماهرینو هم تر اوسه څه اندازه نه ده کړې. که دا سلسله هم داسې روانه وه نو دَ ژبې ډېر الفاظ به متروک شی، ډېر

اصطلاحات به بدل شی او ډېر کلچری علامتونه به ختم شی. او داسې وخت به ډېر ژر راشی چې زمونږه شاعری او زمونږ ادب به دَ پښتنو لُستونکیو دپاره ناقابل فهم شی. دَ دې مشکل دَ حل پېدا کولو تقاضا دا ده چې دَ پښتون کلچر دَ ټولو علامتونو دَ محفوظ کولو دپاره ممکن کوششونه وکړے شی او دا هله کېدے شی چې یو داسې میوزیم جوړ کړے شی چې هغه لُستونکی اوس هم او آئنده هم دَ خپلو کلچری علاماتو په تفصیلاتو پوه کړے شی.

زما په ناقصه رائې کښې دَ پښتو ادب عصری تقاضې هم دغه دی چې ډېر په اختصار ئې ما ذکر وکړه او چې هره تقاضا ئې په خپل بطن کښې ډېرې نورې دَ غور قابلې خبرې لری.

(د اُردو نه پښتو ترجمه دَ سیف الرحمان سید.
میاشتنی "پښتو" پښتو اکېډیمی پېښور یونیورستټی)

# د یوې غلطۍ ازاله

له ۱۹۹۰ء نه څو کاله مخکښې چې په زېر بحث موضوع ما یوه مقاله لیکلې وه او دغه مقاله په یوه رساله کښې چاپ شوې هم وه خو له بده مرغه دَ رسالې نامه له ما هېره شوې وه او کومو ملګریو نه چې ما پُښتنه کړې ده هغوی هم دې سلسله کښې دَ خپلې لاعلمۍ اظهار کړے دے نو دَ موضوع دَ اهمیت پېش نظر ما دا ضروری وګڼله چې یو ځل بیا په دې موضوع خپل خیالات څرګند کړم ځکه چې که زما ملګریو او دوستانو نه دا مقاله هېره ده نو عامو لُستونکیو ته به څه یاده وی. بهرحال دَ خدائې پاک نه دَ تائید دعا سره دا مقاله شروع کوم.

ماته یاد نه دی چې په وړومبی ځل دَ لیکلې مقالې عنوان څه وه خو زما ذهن کښې هغه وخت دوه عنوانونه وو. یو خو دا برنے عنوان وه او بل "دَ خوشحال بابا یو شعر" وه. خو چونکې په دې نامه دَ حمزه مرحوم یو کتاب چاپ شوے وه نو دَ التباس نه دَ ځان دَ بچ کولو دپاره ما دا بل عنوان غوره وګڼلو. عنوان هر څه چې وه الفاظ هر څه چې وو خو مطلب ئې هم دا وه چې زه ئې اوس خپلو ګرانو لُستونکیو ته پېش کوم. که دې مقاله کښې پخوانۍ مقالې سره یو نیم ځائې کښې اختلاف یا څه اضافه وی نو زه پرې دَ خپلو ګرانو لُستونکیو نه پېشګی معذرت غواړم.

دَ اولسی ادبی جرګې په ورځو کښې زمونږ مشرانو او همځولیو مستجاب مومند دَ خوشحال بابا مخالف، دَ پښتانه دښمن او دَ مغلو ایجنټ ګڼلو. دېو مشرانو او همځولیو کښې کاکاجی صنوبر حسېن مومند، امیر حمزه خان شنواری، دوست محمد خان کامل، عبدالحئ حبیبی (ځکه چې حبیبی صاحب هیچرې هم دَ دې خبرې مخالفت نه وه کړے) افضل بنګش، شیخ محمود، اجمل خټک، ولي محمد طوفان، همېش خلیل، سیف الرحمان سلیم، لطیف وهمی او راقم الحروف شامل وو. (خدائې پاک دې مرحومین وبخښی او ژوندېو له دې لوئې عمر ورکړی آمین.) دا نومونه خو ماته رایاد شو کېدے شی چې نور هم وی چې مانه هېر شوی وی خو دَ دوی ټولو دا عقیده دَ خوشحال بابا په دې شعر مبنی وه.

مستجاب مهمند که چرګه دَ مغل دے

زه خوشحال خټک خو باز یم ځائې مې غر (۱)

دې شعر کښې دَ "چرګه دَ مغل" یو داسې ترکیب وه چې دَ "مرغ دست آموز" سره معنوی شراکت لری ځکه نو ټول مشران او ملګری په هغو معنو متفق وو چې بره ئې ذکر وشه او دَ دغو مشرانو او ملګریو نه متاثره دَ زلمی ګُول اکثر نه بلکې ټول لیکونکی ئې دا معنیٰ کوی.

زه حېران یم چې دَ کامل مومند مرحوم غُندې لوئې خوشحال شناس دَ تاریخ مرصع دَ ایډټ کولو نه پس هم څنګه په دغو معنو قانع پاتې شوے وه خو بهر کیف ماته چې دَ دې شعر دَ نویو معنو انکشاف کېده نو دغو مشرانو او همځولیو کښې اکثر په حق

رسیدلی وو ځکه نو دَ دغو مشرانو معنې به اجتماعی ګڼو او زما دا معنیٰ به کم و بیش انفرادي حیثیت لری.

زما معنیٰ دَ مشرانو دَ کړې معنې نه بالکل برعکس ده. زما په خیال خوشحال بابا دې شعر کښې دَ مستجاب مومند مذمت نه کوی بلکې دَ هغه سلامتیا ته دَ خطرې خدشه ظاهروی. تُسونکیو ته دې معلومه وی چې دَ خوشحال بابا په نظم او نثر کښې دَ مستجاب مومند دَ مغلو دَ دوست یا دَ پښتانه دَ دښمن کېدو په باره کښې هیڅ هم نشته بلکې دَ مستجاب مومند دَ قتل نه پس په یوه شعر کښې خوشحال بابا دَ اورنګ زیب په مذمت کښې وائی:

مستجاب غریب یې ووژې په ظلم

دَ خوشحال منصب ئې واخست کوم ګناه دے (۲)

خوشحال بابا او مستجاب مومند یو بل سره ډېر نژدې او اکثرو معاملاتو کښې هم خیال وو. دَ خیبر جنګ (۱۰۸۳هجری) کښې دواړه یو شان دَ مغلو په مرسته کښې دَ پښتنو سره جنګیدلی وو.(۳) دواړه یو ځائې له خیبره دَ تاترې په لار راکوز شوی وو.(٤) او خوشحال بابا چې کور ته ورسېده نو هم دا مستجاب ئې صلاح مصلحت دپاره راوبللو خو هغه لاړ نه شه. (۵) او یو عجیبه اتفاق دا هم وه چې لکه څنګه دَ خوشحال بابا زوئې اشرف خان مغلو ګرفتار کړے وه. (٦) دغسې (هر څو که په مختلفو وجوهاتو وه) دَ ارباب مستجاب خان مومند زوئې ارباب محمد خان هم مغلو ګرفتار کړے وه. (۷)

دَ خوشحال بابا او مستجاب مومند دا هم خیالی او هم کاری

تر دې محدوده نه وه بلکې د خوشحال بابا د ډائرۍ (بیاض) مطابق "مستجاب وته مې په تهترو کښې ووې چې زور اور کار پېښ شه (یعنې د محمد امین خان شکست) راشه یو مصلحت سره وکړو دے ناقباحت فهم وه دا ئې ووئیل چې ښه بیا به سره وکړو. (۸) له دې نه مخکښې خوشحال بابا دا هم لیکی " عالم سره درهم برهم شه د مغل پښتانه سره اعتبار لاړ.(۹) د مغلو او پښتنو ترمنځه د خیبر جنګ (۱۰۸۳هجری) په نتیجه کښې دومره بې اعتباری پېدا شوې وه چې خوشحال بابا ئې له یوه ځله زیات ذکر کوی مثلاً د فدائی خان د راتلو په ضمن کښې وائی "بیا بادشاه (هغه یعنې فدائی خان) وباله هندوستان لره روان شه د مغلو د پښتنو لویه نااعتباری شوې وه. (۱۰) او هم د دې نااعتبارۍ پیش نظر شاید چې خوشحال بابا دا غُښتل چې مستجاب مومند یو متفقه لائحه عمل اختیار کړی او ځکه ئې صلاح مصلحت له راغُښتے وه او عجیبه اتفاق دا دے چې هم په دې موقع خوشحال بابا هغه قصیده وئیلې وه چې دا شعر ئې "آخر" کښې دے:

مستجاب مومند که چرګه د مغل ده

زه خوشحال خټک خو باز یم ځائې مې غر (۱۱)

دې پس منظر کښې صفا معلومیږی چې خوشحال بابا مغلو سره د خپلې تجربې په رڼا کښې د هغو د شدید رد عمل خدشه لرله او چونکې د مستجاب مومند کلے کوټکے پېښور سره بالکل پیوست وه نو خوشحال بابا د صوبه دار د مستقر سره دا قُربت د مستجاب مومند د سلامتیا دپاره خطره ګڼله. د دې په مقابله کښې خوشحال

بابا خان نسبتاً محفوظ ګڼلو ځکه چې ځائې ئې غر وه چې مغل ورته پۀ اسانه نۀ شو رسېدلے. دَ دې باوجود هم خوشحال بابا حفاظتی اقداه‌ات کړی وو. خوړې ته ئې کوچ وکړه(۱۲) او چې هرکله مغلو بللے دے نو دَ ډائری (بیاض) مطابق "کۀ هرڅو مغلو بللم نۀ ورتلم ورته مې ووئیل چې د ما اولس هم واقعه طلب دے چیرې به فساد وکا دَ خپل اولس پۀ بندوبست مشغول یم. (۱۳)

اوس به ګرانو لُستونکیو ته معلومه شوې وی چې خوشحال بابا مستجاب مومند ته دَ مغلو چرګه وئیله نو مطلب ئې دا وه چې لکه څنګه دَ خپل انګڼ چرګه حلالول دَ هر چا دپاره اسان کار دے دغسې مغلو ته دَ کوټلی دَ ارباب مستجاب نیول او وژل هم اسان دی. او مستجاب مومند سره مغلو هم هغه سلوک وکړه چې خوشحال بابا ئې یو کال اګاهو (۱۰۸۳هجری) کښې خدشه ظاهره کړې وه.

زما پۀ خیال دَ دېو معروضاتو پۀ رڼا کښې به ګران لُستونکی پۀ دې نتیجه رسېدلی وی چې دَ نور شهادت پۀ قطعی غېر موجودګۍ کښې محض دَ دې شعر پۀ بنا مستجاب مومند ته دَ مغلو وفادار او دَ پښتنو غدار وئیل یوه ډېره سنګینه غلطی ده او امید دے چې پۀ برنیو کربنو کښې به دَ دې غلطۍ ازاله شوې وی.

## حوالې او حواشی

۱. کلیات دَ کامل مرحوم ایډټ شوے ورومبے چاپ (ادارۀ اشاعت سرحد ص. ۵۲٦

۲. ایضاً ص. ۸۳۹

۳.	خوشحال خان خټک (اُردو) دَ کامل مرحوم ادارۂ اشاعت سرحد ص. ۱۳٦
٤.	ایضاً ص. ۱٤۰
۵.	ایضاً ص. ۱٤۰
٦.	دَ تفصیل دپاره دَ برنی کتاب صفحات ۲۰۲ـ۲۰۳ ولولئ.
۷.	تاریخ مرصع دَ کامل مرحوم ایډیټ کړے ص. ۳۷٤
۸.	ایضاً ص. ۲۹۹ دا تورے شاید چې "ناعاقبت فهم" وی.
۹.	ایضاً ص. ۲۹۹
۱۰.	ایضاً ص. ۳۱۲
۱۱.	ایضاً ص. ۲۹۹ کلیات کښې دَ دې شعر وړومبی مصرعه داسې ده : "مستجاب مومند کۀ چرګه دَ مغل دے"
۱۲.	خوشحال خټک (اُردو) ص. ۱٤۵
۱۳.	تاریخ مرصع ص. ۲۹۹

(میاشتنی مجله "پښتو" جولائی اګست ۲۰۰۱ء پښتو اکېډیمی پېښور یونیورسټی)

# دوست محمد خان کامل مومند

## یوه مطالعه

ښاغلے کامل دَ پښتو دَ هغو څو لیکونکیو نه یو دے چې اول ځل ئې شعوری طور باندې دَ مقصدی ادب لیکلو تکل کړے دے بلکې په دې وجه خو پښتو ادب ته دَ هغه بخښنه نوره هم زیاته قیمتی ده چې ده دَ پښتو دَ دې نوی تحریک نظریاتی او تنظیمی قیادت کړے دے او زمونږ دَ کُول ئې نظری تربیت او روزنه کړې ده. دَ ۱۹۴۷ء نه پس ته چې پښتو ادب کښې کوم نوی خیزونه راغلی دی دَ هغو ټولو دَ خوبیو دپاره که مونږ یو کس ذمه وار وګڼو نو هغه به ښاغلے کامل وی۔

دَ اولسی ادبی جرګې دَ مشر سکتر په حېثیت او دَ نوی ادبی نهضت دَ قائد په حېثیت کامل دَ پښتو ادب هره شعبه متأثره کړې ده.

دَ غزل مزاج کښې دَ نوې زمانې سره دَ چلېدو دپاره مناسبه تبدیلی راوستل ډېره ضروری وه لېکن دَ دې تبدیلۍ ذکر چې څومره اسان دے دومره بلکې دَ دې نه زیاته دَ دې تبدیلۍ عملی کول ګران دی. دَ غزل مزاج کښې تبدیلی به ادبی روایت خامخا متأثر کوی دا دومره لوئې Risk دے چې صرف هغه لیکونکی ئې اخستے شی چې پخپلې فن کارۍ او دَ فن په پختګۍ ئې اعتماد وی. ښاغلی کامل په یواځې ځان دَ غزل مزاج کښې دَ تبدیلۍ دا تجربه شروع کړه. او دَ

کامل خان دا تجربه زمونږ روایت جوړ شو.

دَ غزل دا روایت نن زمونږ دَ ادب ډېره قیمتی سرمایه ده. دَ غزل په اسلوب کښې دَ مقصد ګډون او دَ دې غرض دپاره دَ ټولو استعارو او دَ تشبیهاتو نوې معنې متعینول او ورسره ورسره نوی نوی اصطلاحات او تلمیحات جوړول دومره لوئې کار وه چې دَ یو فرد دَ وس نه بهر دے. دا دومره لوئې کار کامل خان یواځې نه وه کړے لیکن په دې ټول تحریک کښې دَ هغه حصه دومره لویه او دومره اهمه ده چې دَ ادبی تاریخ دَ طالب علم سترګې بیا بیا په هغه پرېوځی.

دَ غزل سره سره په نظم کښې هم کامل خان دغه روایت رانښوېستلو دَ کامل خان دَ اثر دَ لاندې پښتنو لیکونکیو شعوری طور سره نظم کښې دَ نوؤ موضوعاتو تلاش شروع کړو خو دَ ادبی تاریخ طالب علم ته دا خبره ډېره محسوسیږی چې ښاغلی کامل خان دَ نظم په مېدان کښې دَ پښتنو لیکونکیو هغه شان رهنمائی نه ده کړې لکه چې دَ غزل او دَ نثر په سلسله کښې ئې کړې ده. دَ دې وجه عین طبعی ده. دَ کامل خان مېلان شاعری کښې صرف غزل ته دے او دغه وجه ده چې هغه نظم ته پوره توجه نه ده ورکړې ولې دَ اولسی ادبی جرګې په تنقیدی ټولنو کښې پېش شویو نظمونو باندې دَ دوی تنقید دَ نظم شاعرانو ته دَ صحی لارې نشاندهی خامخا کړې ده. دَ نثر په مېدان کښې دَ کامل خان بخښنه ډېره عظیمه ده. ښاغلی کامل په وړومبی ځل پښتو ته دَ تکل صنف منتقل کړو. او په دې صنف کښې "تاتره" او "کاکاجی" غُندې عظیم تکلونه ئې ولیکل. دَ تکل نه علاوه دَ

کلاسیکی شاعرانو دَ مجموعو په مقدمو کښې ئې نوې زاویې راپیدا کړې. دَ کامل نه اګاهو پښتو تنقید یا خو بالکل نه وه او که څه نه څه وه نو هغه هم دَ توصیف او دَ تنقیص نه علاوه هیڅ نه وه. کامل په خپلو تنقیدی مقالو کښې توازن قائم وساتلو او په وړومبی خل ئې پښتو تنقید دَ نوؤ معیارونو سره متعارف کړو.

په نثر کښې دَ کامل خان یوه بله بخښنه هغه لیک شان Style دے چې دوی ئې ابتدا وکړه. دَ کامل نه اول پښتنو لیکونکیو ته دا ضرورت نه وه پیښ شوے چې فلسفیانه فکر ته پخپل ادب کښې ځائې ورکړی. نو ځکه زمونږ نثر کښې دَ وړو وړو جملو او ساده ترکیبونو دور وه خو چې کامل دَ منظم او مسلسل فلسفیانه تحریر ابتدا وکړه نو هغه ته دا ضرورت پیښ شه چې وړې وړې جملې پریږدی او دَ موضوع مطابق دَ مسلسل فکر په مسلسلو جملو کښې اظهار وکړی. دا لیک شان پښتو کښې بالکل نوے وه. نو ځکه ځنې خلقو ته عجیبه غُندې ښکاره شو. نه صرف دا بلکې ځنې خلقو ئې مخالفت هم وکړو. ولې سره دَ دې مخالفته دا حقیقت دے چې نننی ادب کښې ټول تنقیدی او فکری مضامین هم دغه لیک شان کښې لیکلی شی. او دَ "قبول عام" دا سند دې لیک شان ته ځکه حاصل شو چې بغیر دَ دې نه دَ مسلسل فکر اظهار ناممکن دے.

دَ تاریخ په لړ کښې هم دَ کامل خدمات دَ هیرولو نه دی اُردو کښې دَ خوشحال بابا په ژوند او فن دَ یو عظیم کتاب دَ لیکلو نه پس کامل په پښتو کښې هم دَ رحمان بابا، سکندر خان خټک، نواز خټک او علی خان په حقله ډیرې درنې تاریخی مقالې لیکلی دی. دَ

دپو تهولو مقالو دَ لُستلو نه پس لُستونکی ته ظاهرېږی چې دَ کامل انداز بیان او رویه دَ یو صحیح مؤرخ ده. دَ هم عصرو مؤرخینو غُندې هغه نهٔ متعصب دے او نهٔ Wishful Thinker، کامل خان زمونږ دَ کلاسیکی ادب او دَ جدید ادب تر منځهٔ پول دے چې یو طرف ته ترې دَ خوشحال بابا روایات دی او بل خوا ته دَ نوی ادب مقصدی تجربې دی او پهٔ دې اعتبار کامل خان یو عهد آفرین شخصیت دے.

(هفته وار هیواد پښتو پېښور)

# ادب نن سبا ـــ نظم

په دې موضوع دَ څه عرض کولو نه مخکښې ځنې وضاحتونه ضروري ګڼم. اول خو دا خبره سپینول پکار دی چې مونږ په ادبی اصطلاح کښې "نن سبا" په لغوی معنو کښې نه استعمالوؤ او چې هر کله مونږ دا ترکیب دَ ادب په سیاق و سباق کښې استعمالوؤ نو دَ یو مخصوص دور ادب ترې مراد اخلو. ځکه نو دَ نن دَ نظم نه زمونږ مقصد دَ هغه ټول دور نظم دے چې دَ خپل ماهیت او مافیت له اعتباره دَ اوسنی دور سره تعلق لری. دې خصوصیت کښې ځنې ډېر زاړه نظمونه دَ نوی دور په نظمونو کښې حسابېدے شی او ځنې ډېر تازه نظمونه چې بطرز قدیم لیکلے شوی دی هغه به دَ نن سبا دَ نظم له تعریفه خارج شی. خو سره دَ دې به هم زما کوشش وی چې زه دَ نن سبا دَ نظم په باره کښې دَ خپل علم سره سم موضوعات او زمانه، خصوصیات او خپل عهد سره را یو ځائې کړم.

یو بل وضاحت دا هم ضروری دے چې موضوع کښې صرف دَ نظم په باره کښې دَ خپلو معروضاتو دَ پیش کولو فرمائش شوے دے نو ځکه که زه دَ نظم دَ لیکونکیو شاعرانو ذکر ونه کړم نو دَ ګیلې ځائې به نه وی. دا خبره هم په خپل ځائې ډېر اهمیت لری چې په پښتو کښې دَ نظم لیکونکی دَ شمیر په لحاظ دومره ډېر دی چې په دومره لږ وخت کښې دَ ټولو احاطه کول ناممکن دی او که دَ چا نوم

اخلم او دَ چا نه اخلم نو دا به خامخا څنو خلقو ته دَ شکایت موقع ورکوِل وي. ځکه نو زما کوشش به دا وي چې زه دَ شکایت دا موقع هېڅو پېدا نه کړم.

هم دې سره ترلے وضاحت دا هم دے چې که زه دَ چا له نظم نه حواله پېش نه کړم نو دا کوتاهي دې هم ماته راوبخښلے شي.

اوس به زاشو دَ موضوع په حقله معروضاتو ته. پښتو ته نظم له ډېرې پخوانۍ زمانې راسې راننوتے دے. خو زمونږ نظم هم زمونږ دَ ګاونډي ملکونو دَ نظمونو په شان په هغو اصنافو کښې دے چې یا خو مونږ دَ عربۍ او فارسۍ نه پښتو کښې داخل کړي وو لکه قصیده، مثنوي، ترکیب بند، ترجیع بند وغېره او یا بیا دا نظمونه دَ اولسي شاعرۍ په اصنافو کښې وو لکه چاربېته، نیمکۍ، لوبې او بګتۍ وغېره.

زمونږ دَ نن سبا ادب کښې دَ نظم دا دواړه شکله تقریباً ختم شوي دي. زمونږ دَ نن سبا نظم دَ مغربي نظم نه دَ ترتیب او ترکیب په لحاظ ډېر زیات متأثره دے. موضوعات ئې هم تر ډېره لویه حده له مغربي نظمه اخستي دي. زمونږ په شاعرۍ کښې مغربي نظم دَ انګرېزۍ په ذریعه داخل شوے دے. دَ پېرنګیانو دَ راتللو سره انګرېزي او بیا خاص طور سره دَ یونیورسټۍ په سطح تعلیم کښې انګرېزي ادب چې عام شه نو زمونږ په هغو شاعرانو چې کالجونو کښې ئې سبق وئیلو ډېر زیات اثر وکړه او ځنې نوې شاعرانه تکنیکونه زمونږ شاعرۍ ته راننوتل. دَ مثال په طور څوارلس مصرعه ایز نظم "سانېټ" چې په مشرقي ژبو کښې چا نه پېژندلو، زمونږ

شاعرۍ کښې رواج بیاموندلو. او اوس ئې تقریباً هر هغه لُستونکے پېژني چې دَ پښتو دَ شلمې صدۍ دَ شاعرۍ سره دلچسپي لري. هم دغسې دَ انګرېزۍ شاعرۍ دَ یو بل اسلوب "سپنسپرین سټېنزا" حال دے. داسې بندونه لرونکې شاعرۍ هم اول اول پښتو ته دَ دې صدۍ په وړومبۍ نیمایۍ کښې راغله.

خو دَ نظم عام ساخت چې دَ نن سبا ټول شاعران ئې دَ خپلو خیالاتو دَ اظهار دَ ذریعې په طور استعمالوی هم دَ انګرېزۍ دَ Odes نه دَ تأثر په نتیجه کښې پښتو سره متعارف شوے دے. پښتو کښې دَ بندونو دا شاعرۍ له شلمې صدۍ نه مخکښې نه وه. مخمسات او مسدسات وغېره خو زمونږ ډېر زاړه اصناف دی خو دَ څلورو څلورو او درېو درېو کله زیاتو کله کمو بندونو شاعرۍ زمونږ په ژبه کښې نه وه. زمونږ دَ شلمې صدۍ شاعرانو کښې دَ وړومبی دور شاعرانو په دې تکنیک دَ طالب علم په حېثیت دَ پوهې حاصلولو نه پس په دې کښې شاعرۍ شروع کړه او له دوی نه پس ته شاعرانو دَ متخصصینو په حېثیت دَ انګرېزۍ شاعرۍ دَ مطالعې نه پس په دېو اصنافو کښې پخه وېنا وکړه.

هم دغه شان نظم دَ ابتدا نه درجه په درجه کلائمکس ته رسول او کلائمکس ته دَ رسولو نه پس ختمول هم دَ انګرېزۍ شاعرۍ نه مونږ زده کړه او زمونږ ډېرو ښو شاعرانو پکښې کامیابې تجربې وکړې. زمونږ په زړه شاعرۍ کښې دَ موضوع په لحاظ دَ نظمونو دَ نومونو اېښولو روایت موجود وه خو دَ انګرېزۍ شاعرۍ په تتبع کښې دَ تأثر او دَ کلائمکس له اعتباره نظمونو له نومونه ورکول هم

مونږ له انګرېزۍ زده کړي دي.

دَ اصنافو په سلسله کښې له ټولو نه زياته اهمه اخستنه مونږ دَ ازاد نظم کړې ده. انګرېزۍ کښې ازاد نظم سوونو کلونو زاړه روايات لري او پنځه رکنيز (لس سپلابيزه) مصرعه کښې ليکلے شي خو داسې ښکاري چې هر کله زمونږ په ژبو کښې لس سپلابيزه مصرعه ممکنه نه ده نو ځکه مشرقي ژبو کښې ازاد نظم په دې فرق خپل کړے شوے دے چې که انګرېزۍ کښې دَ ازاد نظم تعريف دا کېدے شي چې هغه نظم چې په پنځه رکنيز (لس سپلابيز) بحر کښې دَ قافيې له انزاله بغېر وليکلے شي نو په مشرقي ژبو کښې ئې شايد تعريف دا دے چې هغه بې قافيې نظم چې هره مصرعه ئې يا دَ زورلي يا نازورلي سپلابه شروع کېږي يعنې که يو نظم کښې وړومبۍ کرښه دَ زورلي سپلابه شروع شي نو بيا به ئې هره مصرعه هم دغسې له زورلي سپلابه شروع کېږي او هم دا شان که يو نظم داسې مصرعې نه شروع شي چې وړومبے سپلاب ئې نازورلے وي نو بيا به ئې دَ هرې مصرعې وړومبے سپلاب نازورلے وي او دغسې دَ زورلي يا نازورلي سپلابونو دا ترتيب به يو شان وي.

له ټولو نه اخر کښې چې مونږ له بهره کوم صنف اخستے دے هغه دَ جاپاني شاعرۍ صنف "هائيکو" دے چې لکه دَ پنجابۍ دَ "ماهيا" درې مصرعې لري. زمونږ ځنو زلميو ليکونکيو پښتو ته دا صنف له اُردو نه درآمد کړے دے خو رښتيا خبره دا ده چې دا صنف په پښتو کښې دَ رواج موندلو دپاره ډېر وخت، لويه پخته کاري او دَ ډېرو پخو او لويو ليکونکيو سرپرستي غواړي.

دَ نن سبا نظم کښې چې دَ موضوعاتو له اعتباره کومه تبدیلي او جدت ښکاری هغه ډېر لوئې اهمیت لری. دَ پښتو دَ پخوانی نظم یو څو ترلی موضوعات وو. ستائنه، هجو، وعظ و نصیحت او افسانه او حکایت. که څنې شاعرانو له تخیله کار اخستے دے نو دَ فطرت مناظر ئې خپلو نظمونو کښې را یو ځائې کړی دی او بس. خو دَ نن سبا نظم کښې دَ معاشرې مسائل، دَ دې مسائلو په وجه پېدا شوے درد او بیا دَ دې درد علاج هم ډېر په فن کارانه طریقه ښکاره کړے شوے دے او څومره چې دا کار په مهارت او فنکارئ شوے دے دومره ئې لیکونکے شاعر لوئې او دَ اولس خوښ وی. په دې لحاظ نظم لیکونکیو نه صرف دَ نظمونو معیار اوچت کړے دے بلکې دَ اولس دَ ذوق معیار ئې هم ښائسته کړے دے.

دَ خپلې معاشرې نه علاوه دَ ننني نظم لیکونکے دَ غم جانان اظهار هم دَ غم دوران په پېرایه کښې کوی داسې یو ډېر ښکلے رومانی طرز زمونږ ادب ته رانتوتے دے چې ورځ په ورځ مخ په ترقی دے.

ننني نظم لیکونکے یواځې خپلې مسئلې په خپلې شاعرئ کښې نه راځائې کوی بلکې دَ ټولې دنیا دَ اولس مسئلې خپلې مسئلې ګڼی او داسې ئې ښکاره کوی لکه چې دا هر څه په ده تېرېږی. دا مشترک درد هغه دَ ایشیا، افریقې او لاطینی امریکې دَ محکوم او مظلوم اولس دپاره محسوسوی چې دَ انسان دَ لاسه دَ انسان دَ استحصال دَ لوئې جرم ښکار دی او دَ خپلې قومی ازادئ په جدوجهد کښې مصروف دی.

دَ هم دغه رجحان په نتیجه کښې پښتنو لیکونکیو دَ مارشل

لا په هر دور کښې نه صرف خپله شاعری او خپل فن دَ انسان دَ
ازادۍ دَ انسانی شرف دَ حصول دَ جدوجهد دپاره استعمال کړې ده
بلکې په دغو واړو دورونو کښې دَ ډکټېټر شپ برخلاف دَ اولس
جدوجهد کښې ئې دَ زندانونو ازمائشونه ګاللی او تکلیفونه ئې تېر
کړی دی. او دا زمونږ دَ نظم لیکونکیو شاعرانو له ټولو نوے رنګ او
خصوصیت دے.

# هجری که امیر؟

"پټه خزانه في المیزان" کښې چې ما د "هواد" د مفهوم د څرګندونې په سلسله کښې د پخوانيو شاعرانو د شعرونو حوالې ورکولې نو د امیر د شعرونو او ټپو نه مخکښې مې دا تمهیدی خبره کړې وه چې "دا شاعر چې د ورکې خزانې مؤلف ئې په غلطۍ امیر خان هجری ګڼی د دیارلسمې صدۍ شاعر دے." (۱) په "پټه خزانه فی المیزان" د نکته چینۍ په لړ کښې چې د ورکې خزانې مؤلف دې ځائې ته رارسېدلے دے نو وائی:

"دا شاعر په وړومبی ځل راقم الحروف په ورکه خزانه دوېم ټوک مطبوعه ۱۹۶۰ء کښې معرفی کړے دے.... د پټې خزانې د حقیقت نه مخالف(؟) د امیر خان هجری په باره کښې هم د خپلې رائې اختلاف ښودلے دے او حسب عادت له دغه حقیقته انکار کوی چې ګڼی دا شاعر "هجری" تخلص نه کوی خو اصلیت د دغه رائې برعکس دے. د خپلې دعوې په تائید او د بناغلی هم عصر په تردید کښې به د شاعر د څو غزلونو په دغو مقطعو اکتفا وکړو:

ستا د هجر تندې واخستم دلبره
امیر خان هجری په وصل کړه سېراب
چې امیر هجری د عشق بدلې وائی
پاس په سر ئې په هوا ژاړی مرغونه" (۲)

دَ "تول پارسنگ" لیکونکی دَ "څو" په ځائې صرف دوه مقطعې راوړی دې او په یو کښې هم "هجری" دَ تخلص په ځائې نه دے استعمال شوے. وړومبی مقطع په اصل دیوان کښې داسې ده:

ستا دَ هجر تندې واخستم دلبره

امیر هجری په وصل کړه سېراب (۳)

دلته دَ "تول پارسنگ" لیکونکی دَ خپل عادت مطابق په مقطع کښې تحریف کړے دے ځکه چې په موجوده صورت کښې ئې هغه وزن نه شو برابرولے حالانکې دا مقطع داسې بهتر وه:

ستا دَ هجر تندې واخستم دلبره

ما امیر هجری په وصل کړه سېراب

ځکه چې وړومبی مصرعه کښې دَ "واخستم" دَ واحد متکلم صورت سره په دویمه مصرعه کښې هم دَ واحد متکلم ضمیر پکار وه او دَ "امیر خان هجری په وصل کړه سېراب" په شکل کښې "خان" بې ضرورته وه او دا دَ "تول پارسنگ" دَ لیکونکی دَ عادت سره سم یو ښکاره تحریف دے.

لکه چې مخکښې عرض وشه دواړو مقطعو کښې "هجری" تخلص نه دے استعمال شوے او که تخلص دَ شاعر دَ نوم په ځائې یو بل اختیار کړی نوم ته وائی نو دَ امیر په هغو دواړو دیوانونو کښې چې پښتو اکېډیمی کښې پراته دی، یوه مقطع کښې هم دَ "هجری" نوم نه دے استعمال شوے بلکې زما دَ شمېر مطابق تقریباً دواړو دیوانونو کښې، ۱۵۹۳ غزلې دی چې پکښې ۱۵۷۸ غزلې مقطعې لری. بې مقطعې غزلې پکښې ۱۵ دی او په ټول دیوان کښې دَ مقطعو شمېر

۱۶۲۷ دے. دېو مقطعو کښې ۱۵٤۷ مقطعو کښې تخلص امیر استعمال شوے دے او امیر هجری پکښې ۸۰ ځله راغلے دے. دَ غزلو نه علاوه په دیوانونو کښې رباعیات، مربع، مخمس، مسدس، معشر او نور نظمونه هم شته چې پکښې ۱۱٦ ځل امیر او صرف څلور ځله امیر هجری راغلے دے. لهٔ دې شمېره دا صفا ښکاری چې په دواړو دیوانونو کښې تقریباً ۱٦٦۳ ځل امیر او ۸٤ ځل امیر هجری لیکلے شوے دے. اوس ګران لُستونکی دې خپله اندازه ولګوی چې یوه مقطع کښې هم "هجری" دَ تخلص په حېثیت نهٔ دے راغلے نو دا وېنا به دَ "تول پارسنګ" دَ لیکونکی دَ سرزورۍ نه بغېر نور څهٔ وی چې دَ امیر تخلص هجری وهٔ.

هجری امیر دَ صفت په طور دَ "مهجور" په معنو کښې استعمالوی او دَ یو صفت دَ داسې استعمال په بنیاد یو هوښیار او په شعر پوهه سړے دا غلطه او باطله دعویٰ نهٔ شی منلے چې دا صفت دَ تخلص په طور استعمال شوے دے.

دَ امیر په دواړو دیوانونو دَ کتاب نوم "دیوان امیر" لیکلے شوے دے. دَ دوېم دیوان په اخری پاڼه په پښتو او انګرېزۍ کښې دَ "دیوان امیر خان" الفاظ لیکلی شوی دی. نو کهٔ هجری دَ امیر تخلص وے نو یو ځل خو به چا دَ "دیوان هجری" یا "دیوان امیر هجری" یا "دیوان امیر خان هجری" په لفظونو کښې ورته اشاره کړې وه. هم دغسې Catalogue of Pushto Manuscripts in the Libraries of the British Isles (دَ برطانوی جزائرو په لائبرېریو کښې دَ پښتو قلمی کتابونو فهرست) کښې په ۱۱۰ نمبر دَ دیوان نوم "دیوان امیر خان" یاد کړے شوے دے

او دَ کتاب مرتب يو ځل هم ورته هجري نه دی وئيلی. فهرست کښې دَ کتاب ترقيمه داسې ليکلې شوې ده:

"تمت تمام شد اين کتاب مستتاب(؟) ديوان امير خان ولد شهنواز خان محمود زے مسمیٰ بر امير بحری" (٤)

په دې ترقيمه ډېر سوالونه کېدے شی. اول خو دا چې دَ ترقيمه ليکونکی نوم نشته چې دا پته ترې ولګی چې علمی معيار ئې څه وه؟ دوېم دا چې دَ امير هجری په ځائې دَ امير بحری ليکل هم ډېر شکونه پېدا کوی. درېمه دا چې دَ امير بحری نوم دَ امير خان دَ پلار شهنواز خان محمودزی نوم سره ليکلے شوے دے. او اخری دا چې دا ترقيمه چې په اصل کتاب کښې شته نو پښتو اکېډيمی کښې دَ دې نقل کونکی نه څنګه پاتې شوه. بهر حال که دا لفظ امير هجری هم وی نو کېدے شی چې دَ ورکې خزانې دَ ليکونکی غُندې دَ ترقيمې ليکونکے هم دَ غلط فهمی ښکار شوے وی. دَ ورکې خزانې دَ چاپ کېدو نه پس دَ امير نوم که هر چا "هجری" اخستے وی نو څرګنده خبره ده چې هغه به دَ ورکې خزانې دَ ګمراه کن بيان نه متأثره شوے وی لېکن دَ خوشحالۍ خبره دا ده چې زمونږ عالمه طبقه له دغه بيانه متأثره شوې نه ده. دَ مثال په طور دَ ورکې خزانې نه يو کال پس چې په اپرېل ۱۹۶۳ء کښې قاضی عبدالحليم اثر خپل کتاب "تېر هېر شاعران" چاپ کړو نو امير ئې دَ "امير خان" او "امير" په نامه ياد کړے دے. او يو ځل ئې هم ورته "هجری" نه دے وئيلے. دا خبره هم دَ هېرولو نه ده چې دَ قاضی عبدالحليم اثر افغانی مرحوم دا کتاب پښتو اکېډيمی چاپ کړے دے چې هغه وخت پکښې دَ ژبې لوئی لوئی

عالمان موجود وو او هغوی دَ اثر مرحوم دې تحقیق سره هیڅ اختلاف نه دے کړے. دَ اثر صاحب دا تحقیق دومره اهم ګڼلے شوے دے چې ښاغلی صدیق الله خان رښتین ئې هم نوټس اخستے دے. دوی وائی:

"(دَ ورکې خزانې مؤلف) دَ امیر خان له نامه سره دَ هجری تخلص هم راوړے دے مګر ښاغلی اثر ورته بیا هیڅ اشاره نه ده کړې."(۵) او له دې نه پس هم هغه نتیجې ته رسېدلے دے چې مخکښې ذکر شوه یعنې دا چې "کېدے شی چې امیر خان دَ خپل وطن او خپلو یارانو په یاد دغه تخلص په ځان ایښے وی."(٦) لکه چې مخکښې تفصیل تېر شه امیر صرف ۸٤ ځل ځان سره دَ هجری صفت بیان کړے دے نو دا خو کېدے شی چې ۸٤ ځل دَ هغه خپل وطن او یاران رایاد شوی وی خو دا بالکل نه شی کېدے چې دَ ۸٤ واره دَ "امیر هجری" دَ ترکیب نه مونږ دا نتیجه وباسو چې هجری دَ هغه تخلص وه.

اخری علمی نګارش چې پکښې دَ امیر خان ذکر راغلے دے فرهنګ زبان و ادبیات پښتو دے. دې فرهنګ کښې دَ امیر خان په نامه دَ دوؤ شاعرانو او دَ امیر په نامه دَ دريو شاعرانو ذکر شوے دے. ځمونږ زېر بحث سره دَ متعلق شاعر امیر خان ذکر داسې شوے دے:

"امیر خان اجداد امیر خان در لالپوره ننګرهار میزیستند و در عصر اعلیٰ حضرت احمد شاه کبیر (۱۱۸٦ــ۱۱٦؟) ه ق) رهسپار پشاور و در شېرپاؤ مسکون شدند. امیر به عشیره علی زئی طائفه حسن خېل قوم مومند نسبت داشت. در طریقت پابند طریقه

قادریه و تا سال ۱۲۶۱ هق در قید حیات بود. شاعر صاحب دیوان است. اشعارش مضامین عشقی و تصوفی را در بردارد.(۷)

دلته دا شاعر دوه ځل دَ امیر خان په نامه او یو ځل دَ امیر په نامه یاد شوے دے خو دَ هجری په نوم ئې ذکر نه دے شوے. او دا محض اتفاق نه دے بلکې دَ فرهنګ دَ لیکونکی دَ تحقیق نتیجه ده. دَ دېو ټولو حقائقو په رڼا کښې دا دوه خبرې صفا ثابتیږی. وړومبی دا چې دَ امیر یا امیر خان تخلص هجری قطعاً نه وه او بله دا چې په دې دعویٰ کښې زه یواځې نه یم بلکې دَ لر او بر عالمان او مستشرقین هم هغه خبره کوی چې زه ئې کوم او دَ ورکې خزانې مؤلف او دَ "تول پارسنګ" لیکونکے په خپل موقف کښې بالکل تنها دے او هیڅ یو ملګرے نه لری.

(درې میاشتنی کتابی سلسله "مرکه" مردان)

## "ځ"

دَ یوې رائې مطابق دَ املا پحقله دَ باره ګلی دَ سیمینار فېصلو زمونږ مشکلات تر څۀ حده کم کړی خو دی ولې ختم کړی ئې نۀ دی. ځکه پکار ده چې پۀ دې مسئله نور هم غور وکړے شی او دا سلسله دې تر هغه وخته جاری وساتلے شی چې مونږ یوې نتیجې ته ورسو. زما پۀ خیال لۀ ټولو نه اهمه مسئله دَ "ځ" ده ځکه چې پۀ دې باب له دَ باره ګلی دَ سیمینار فېصله کونکی بیخی چپ پاتې شوی دی حالانکې پکار دا وو چې دَ مفصل بحث نه پس ته ئې پۀ دې حقله څۀ فېصله اورمرو کړے وے. بهرحال زۀ لۀ هم دغه ځایه دَ دې بحث ابتدا کوم.

"ځ" څۀ نوے تورے نۀ دے (لکه چې دَ ځنو "عالمانو" خیال دے) بلکې پښتو کښې دا تورے دَ کلمې پۀ سر (لکه هېڅ، هر، هم) او مینځ (لکه بهر، نهر، زهر) کښې باقاعده اواز لری. دَ کلمې اخر کښې دا تورے پښتو کښې تر اوسه نۀ استعمالېدۀ او هم دغه وجه ده چې دَ یو مخصوص غږ دپاره چې دَ "ه" دَ پاسه دَ "ء" پۀ لیک یعنې پۀ دوه توریو مستعمل وۀ. مونږ دا شکل غوره وګڼلو. دَ یو بیل غږ دَ پاره یو بیل تورے وضع کول هم داسې ضروری وو لکه چې دَ نورو اوازونو دپاره عالمانو ضروری ګڼلی دی ځکه چې کۀ دَ کاتب یا پروف رېډر پۀ غلطی دَ "ه" دَ پاسه "ء" ونۀ لیکلے شی نو معنیٰ کښې فرق راځی. دَ مثال پۀ طور له او لۀ، ته او تۀ، زره او زړۀ، وه او وۀ، هغه او

هغۀ، ده او دۀ، او داسې نور بې شمېره کلمات دَ يو همزه په غېر موجردګۍ کښې خپلې معنې بدلوی. دَ "ه" نه دَ "ء" پرېوتل څه غېرحقيقی خطره نه ده بلکې هره ورځ بې شمېره داسې غلطۍ زمونږ له سترګو تېرېږی. دَ مثال په طور به زه دَ پښتو اکېډيمی دَ نوې املا په باره کښې دَ بارہ ګلی دَ فېصلو تفصيل ته اشاره وکړم چې دَ "پښتو دَ نوې املا" په نامه چاپ شوی دی. دَ دې کتاب په وړومبی صفحه دولسو پوره کرښو او درې نيم ګړيو کرښو کښې چې ميزان ئې په مشکله ديارلس کرښې جوړيږی نهه ځله "په" استعمال شوے دے او يو ځل هم دَ "ه" دَ پاسه دَ "ء" توره نه دے ليکلے شوے. (۱) حالانکې دَ يولسمې فېصلې دَ لاندې "په" په هغو ټکيو کښې شامل ګڼلے شوے دے چې همزه به ورسره لګی. (۲) دې فېصله کښې دا وېنا هم غلطه ده چې دَ افغانستان او "سوئيلی" پښتونخوا په دې خبره اتفاق راغلے دے چې زړۀ، ښۀ، پۀ، تۀ، دَ مخکښې په شان (دلته هم دَ "په" په "ه" همزه نشته) دَ "ه" دَ پاسه "ء" ليکو. (۳) دېو لفظونو کښې يو لفظ "به" هم بيان شوے دے چې هيچرې متنازعه نه وه او نه پرې چا چرې "ء" ليکلې ده. بله غلطی دا هم ده چې افغانستان په خپلو املائی فېصلو کښې له دې نه مختلفه فېصله کړې ده. دَ ۱۳۲۷هش دَ سنبلې په اتم (۳۰ اګست ۱۹۷۸ء) دا واضحه فېصله شوې وه چې زه، ته، ده به بې همزه ليکلے شی. (٤) اوس نه يو خبر چې دَ سيمينار دې فېصلې ته په کوم بنياد دَ پېښور، سهېلی پښتونخوا او افغانستان متفقه فېصله وئيلې شوې ده.

دَ "ه" دَ پاسه همزه په فارسی ژبه کښې هم رواج لری خو هلته

ئې اواز او استعمال لهٔ پښتو نه دومره مختلف دے چې کهٔ بل څهٔ دليل نهٔ وے نو هم پهٔ دې وجه دَ "ه" دَ پاسه "ء" پهٔ پښتو کښې استعمالول نهٔ وو پکار. فارسي کښې دَ "ه" دَ پاسه "ء" دَ اضافت او صفت پهٔ معنو کښې پکارېږی لکه خانهٔ خدا، یا تختهٔ سیاه. هرکله چې فارسي دَ افغانستان دوېمه ژبه ده نو څکه فارسي ویونکیو او پښتو ویونکیو ته به دَ "ه" دَ پاسه دَ "ء" استعمال مشکلات پېدا کوی. فارسي لُستونکی به دَ پښتو پهٔ شان او پښتو لُستونکی به دَ فارسي پهٔ شان دَ دې توری پهٔ ادا کولو مجبور وی. داسې به دَ ماشومانو او خارجی زده کونکیو دپاره مشکلات پېدا کیږی.

هم دغه مشکلات به پهٔ یوه بله وجه هم پېدا کیږی. پښتو کښې پهٔ "و" او "ی" هم همزه استعمالیږی خو دغو دواړو ځایونو کښې ئې اواز بیل بیل شان دے او څکه خارجی زده کونکیو او دَ ابتدائی جماعتونو شاګردانو کښې به دَ "ه" دَ پاسه دَ "ء" بدل اواز خامخا پرېشانی پېدا کوی. دَ "و" دَ پاسه دَ "ء" دَ لیک نه به یو بل مشکل هم پېدا شی چې زهٔ به ئې پخپل ځائې ذکر وکړم.

فارسي کښې دَ "ه" یائې مجهول او یائې معروف دَ پاسه دَ "ء" استعمال پهٔ پښتو کښې دَ "ه" دَ پاسه دَ همزه دَ استعمال نه پهٔ یو بل رنګ هم فرق لری. دَ پښتو الفاظو کښې دَ "ه" دَ پاسه دَ "ء" استعمال هیڅ سېلابی تبدیلی نهٔ پېدا کوی بلکې دَ همزه پهٔ وجه سېلاب جوړیږی. دَ دې برعکس فارسي کښې همزه پهٔ نظم او نثر کښې یو سېلاب زیاتوی. دَ مثال پهٔ طور دا شعر دَ نظر لاندې وساتئ:

به زمین نارسیده مې پرسد

خانۀ انوری کجا باشد

دَ یائې مجهول دَ پاسه دَ همزه اواز په دې مصرعه کښې وخیرئ.

جائے تنګ است و مردمان بسیار

په یائې معروف دَ همزه اواز دپاره په دې مصرعه غور وکړئ:

هر که پیدا می شود از دور پندرام توئی

ګرانو لُستونکیو به اندازه لګولې وی چې "ه"، "ے" او "ی" کښې همزه یو سېلاب زیاتوی خو پښتو کښې داسې نه وی بلکې لکه څنګه چې مخکښې عرض وشه همزه چې دَ هر حرف نه پس راشي نو یو سېلاب جوړ شي. دَ "و" دپاره مې دَ مثال ضرورت ځکه ونه ګڼلو چې عام طور سره دَ "و" نه پس یائې مجهول استعمالیږی لکه لولوئے عمان وغېره او دَ یائې مجهول بیان تېر شه.

یو تورے چې په یو ځائې کښې یو اواز په بل ځائې کښې بل اواز ورکوی نو له استعمال نه ئې ترک غوره دے. ځکه نو په "ه" باندې همزه اچول دَ لُستونکی مشکلات زیاتوی او پکار ده چې لُستونکی سره دا زیاتے ونه کړے شي. بیا خاص طور سره په داسې صورت کښې چې دَ "ه" یو شکل یعنې "ھ" زمونږ دا مشکل ختموی. نه التباس پېدا کوی او نه اواز کښې فرق راولی نو غوره دا ده چې هم دا شکل دَ دې اواز دپاره اختیار کړے شي.

دَ څنو "عالمانو" خیال دے چې "ھ" دَ پښتو تورے نه دے حالانکې دغو "عالمانو" کښې څنې چې دَ خپلو نومونو مختصر شکل لیکی نو دَ "ه" په ځائې ئې "ھ" لیکی. یو اعتراض دا هم کیږی چې

"ھ" دَ هندي توري دے او دي ضمن کښې دَ "چھجوسنګھ" په طنزیه ذکر دَ خپلي دعوې ثبوت پيش کوی. "ھ" دَ هائي هوز یو شکل دے چي خالص دَ عربي توري دے او قرآن کریم کښې ئي دومره استعمال شوے دے چي دَ سورت فاتحه په اووه آیتونو کښې دري ځل دا توري راغلے دے. زما یو خوږ دوست دا یو خندنے اعتراض هم کوی چي دَ "ہ" نه دَ "ھ" شکل ښائسته نه ښکاری. دَ دي اعتراض په حقله ښاغلی لُستونکی پخپله فیصله کولے شی ځکه چي که ذاتی خوښه او ناخوښه دلیل وګڼلے شی نو دَ چا به "الف" نه وی خوښ چي نیغ ولاړ دے او چاته به "ب" ملاسته ښکاری. او داسي به دَ پټی ټول توری وکړلے شی او دَ تهجی ټول حروف به دَ ذاتی ناخوښي ښکار شی او مونږ به داسي حروف پیدا کولو ته مجبور شو چي هر چا ته ښائسته ښکاری چي تقریباً یوه ناممکن خبره ده.

اوس زه دَ "و" دَ پاسه دَ همزه دَ استعمال دَ هغو مشکلاتو تفصیل بیانوم چي ما ئي مخکښي ذکر کړے دے. داسي استعمال زمونږ په شاعری کښي دا مشکل پیدا کوی چي قافیه غلطوی. دَ داسي استعمال دَ مثال په طور به زه څني شعرونه پیش کړم. وړومبے مثال ئي دَ خوشحال بابا هغه غزل دے چي مطلع ئي داسي ده:

چي دا هسي بي نیازی کوي دا ښهٔ کړ؟

زه به نور یاران پیدا کړم تهٔ به څهٔ کړ (۵)

دَ غزل یو شعر دا دے:

زما زړهٔ ورځني صبر وهٔ چي ګنګ دے

نن زما طوطا یو څو خبري وکړ (٦)

(سا دانسته دَ کلیات املا استعمال کړې ده چې لُستونکی دَ قافیو دَ غلطۍ په سلسله کښې زما په دلیل پوه شی.)

دَ دې غزل نورې قافیې لېمهٔ، تهٔ، تلهٔ، او اودهٔ وغېره دی. ظاهره ده چې "وکړ" لیمهٔ کړ، تهٔ کړ، وغېره سره قافیه کېدے نه شی. که دا شعرونه په "ه" لیکلے شوے وے نو په لاندې لیکلی صورت کښې به ئې قافیه بالکل درسته وه:

چې دا هسې بې نیازی کوې دا ښه کړې؟

زه به نور یاران پیدا کړم ته به څه کړې؟

زما زړه ورځنې صبر وه چې ګونګ دے

نن زما طوطا یو څو خبرې وه کړې

او داسې به دَ غزل نورو قافیو لیمه، تله او اوده سره سمې شوې وے.

دَ کلیات املا کښې یوه بله مطلع:

څهٔ دَ بدو ژغ وهٔ چې مابنام راباند وشهٔ

تندر وهٔ یا توپ وهٔ پرې مې تخنې تخنې زړهٔ شهٔ(۷)

دَ دې غزل نورې قافیې اودهٔ، مړهٔ، اوبهٔ، څهٔ، په کلیات کښې لیکلے شوی دی چې دَ مطلعې دَ دوېمې مصرعې سره سمون نه خوری که مطلع داسې لیکلے شوے وے:

څه دَ بدو ژغ وه چې مابنام راباندې وه شه

تندر وه یا توپ وه پرې مې تخنې تخنې زړه شه

او ټولې قافیې هم په دې شکل په "ه" یعنې اوده، مړه، اُبه، ته لیکلے شوې وے نو په قافیه اعتراض نه شه کېدے.

دَ کلیات په املا کښې یوه بله مطلع وخیرئ:

پۀ کاتۀ کاتۀ مې سترګې په خاتۀ شي

چې خبر دې دَ راتلو راباندې وشي (۸)

دَ دې غزل نورې قافيې نۀ، واتۀ، ښۀ، وغېره دی چې دَ مطلع دَ دوېمې مصرعې سره سمې نه دی البته که دا شعرونه هم "ه" سره ليکلے شوے وے نو دَ مطلع دوېمه مصرعه به:

چې خبر دې دَ راتله راباندې وه شي

وے او دغسې ټولې قافيې نه، واته، او ښه وغېره به مطلعې سره برابرې شوې وے.

دَ ښه، ته، نه، که سره دَ وه قافيه زمونږ په مثنويانو کښې ډېر په کثرت سره مونده شي. زه ئې دَ رحمت داوی دَ لېلیٰ مجنون له مثنوی نه مثالونه پېش کوم:

زما له لاسه بدې وسوه

رامعلوم چې نيکی نۀ سوه

لاس مې شل بدې مې وکړه

اوس دعا کړم لاس مې ښۀ کړه (۹)

پښتون هم خوښ باندې زړۀ کا

او دعا و ماته وکا (۱۰)

په دې شکل کښې وسوه، نۀ سوه، وکړه، ښۀ کړه، زړۀ کا، وکا قافيې غلطوی. که دَ ديو متبادل صورت کښې چې "ه" سره ليکلے وے:

زما له لاسه بدې وه شوه

را معلوم چې نيکی نه شوه

لاس مې شل بدې مې وهٔ کړه

اوس دعا کړه لاس مې ښهٔ کړه

پښتون هم خوبنں باندې زړهٔ کا

او دعـــا و مـــا ته وهٔ کا

نو قافيې به بالکل صحيح وے.

عيسیٰ اخون زاده دَ پښتو يو اولسی شاعر تېر شوے دے چې دَ جم ډارمستېټر هار و بهار کښې ئې دَ کلام ډېرې نمونې ورکړے شوی دی. دَ دهٔ يو شعر دے:

اې ظالمې ظلم مهٔ کړه

ما سره خبرې وکړه (۱۱)

اوس دَ "مهٔ کړه" او "وکړه" قافيې سمے نهٔ خوری. دَ دې پهٔ ځائې کهٔ دا شعر داسې وليکلے شي:

اے ظالمې ظلم مهٔ کړه

ما سره خبرې وهٔ کړه

نو قافيه به ئې درسته شي.

محمد دين تېلی دَ نوښار دَ چاربېتې ډېر لوئی شاعر تېر شوے دے دَ هغهٔ دَ يوې چاربېتې سر هم پهٔ چاپ شوی شکل کښې پېش کوم:

روح مې له تنه ځی روان دے

چې خدائې کوی هغه به وکاند

واړه اختيار مې دَ جانان دے

راسره بد کوی کهٔ ښهٔ کاند

دې چاربېته کښې "بنۀ کاند" او "وکاند" په قافیه کښې استعمال شوی دی او داسې دَ "کاند" ټولې مصرعې لکه راتلۀ، کاتۀ، وغېره هم په دغه قافیه کښې استعمال شوی دی چې دَ قافیې په علم پوه خلق به ئې هیچرې سمې ونه ګڼي. دَ دې په ځائې که دَ چاربېتې سر او نورې متعلقه مصرعې په "ه" ولیکلے شي نو قافیه ئې درستېږي لکه:

روح مې له تنه ځي روان دے

چې خدائې کوی هغه به وه کاندې

واړه اختیار مې دَ جانان دے

راسره بد کوی که بنه کاندې

دَ قافیودَ دېو غلطیو احساس نورو عالمانو او کاتبانو ته هم شوے دے ځکه نو هغوی دَ "و" په ځائې "وه" لیکی. دَ مثال دپاره وګورئ دَ خوشحال بابا دَ کلیات دا شعرونه:

هغه یار راځخه وایې هرګز نۀ وۀ

هیڅ مې نۀ زده کۀ همېش راسره وۀ ولاړ (۱۳)

په خطا باندې عطا په طاعت قهر

چې په وهم فهم نۀ وی هغه وه کړ (۱٤)

یا دَ رحمت داوی دَ لېلیٰ مجنون دا شعرونه:

په تعجیل ئۓ سلام وه کړ

د حبیب زیارت ئې بنۀ کړ (۱۵)

راشه تۀ هم صبر وه کړه

تسلا خپله دَ زړه کړه (۱٦)

خو دَ "وھ" پہ ځائې "وہ" استعمالول ځکه غلط دی چې "وه" کہ اُردو کښې (د هغه پہ معنیٰ) او کم و زيات دغه اواز ورکوی نو وی به خو پښتو کښې "وه" دَ مؤنث صيغه ده او مذکر ئې وھ دے.

اوس به دا بحث رالنډ کړو پښتو کښې يو داسې اواز دے چې هغه نن سبا دَ "و" او "ہ" دَ پاسه پہ همزه (ء) ليکلے شی. دَ دې غړ دَ پاره کہ يو تورے پيدا شی چې زمونږ مشکل حل کوی نو پکار دی چې مونږ ئې قبول کړو. مونږ دَ دې مقصد دپاره "ھ" پکاروو ځکه چې دا تورے پښتو کښې شته خو هيڅ کار ترې نہ شی اخستے. کہ زما دې تجويز سره څوک اتفاق نہ کوی نو هغوی دې دَ دې غړ دپاره متبادل تورے تجويز کړی بيا به پرې بحث وکړو چې زمونږ مشکلات ئې کم کړل کہ زيات.

*(نوټ : دا مقاله دَ محترم قلندر مومند صاحب مرحوم اخری مقاله ده. چې دَ پښتو اکېډيمی پہ مجله "پښتو" جولائی اګست ۲۰۰۳ء کښې دَ هغوی دَ وفات نه پس چاپ شوې ده).*

## حوالې


۱. دَ پښتو نوې املا ص. ۱

۲. ايضاً ص. ۱۶

۳. ايضاً ص ص ۲٤ او ۲۵

٤. ليکوالی املا او انشا دَ ګل باچا الفت ص ۱۲

۵. دَ خوشحال بابا کليات ص. ۱۱۷

٦. ایضاً
٧. ایضاً ص ص ۲٦٤ او ۲٦۲
٨. ایضاً ص ص ۳۳۲ او ۳۳۳
٩. دَ رحمت داوی لیلیٰ مجنون ص ۵۸
١٠. ایضاً ص ٦۵
١١. دَ پښتونه بهار وبهار ص. ۱٤۱
١٢. دَ وینو جام دَ اسلم ختک ص. ۲۸
١٣. دَ خوشحال بابا کلیات ص. ۱۱٦
١٤. ایضاً ص. ۱۲۰
١۵. لیلیٰ مجنون ص. ۳ ب
١٦. ایضاً ص. ۱۱۱ ب

# دَ قلندر مومند ریسرچ سیل

## لهٔ خوا چاپ شوي کتابونه

- رڼائي دَ قلندر مومند شعري مجموعه
- دَ تاريخ ژړا (تاريخ ګوئي) دَ مشتاق مجروح یوسفزي
- میزان دَ قلندر مومند مقالې
- تنقید قلندر مومند

## راروان کتابونه

- دَ قلندر مومند کلیات
- دَ قلندر مومند خطونه
- دَ صاحبزاده فيضي شاعري
- دَ پښتو لغت
- پهٔ قلندر مومند دَ زبير حسرت دَ پي ايچ ډي مقاله